# ځرک

پنځلسم کال، لومړی، پرلپسې ۱۰۲مه ګڼه،
عقرب۱۳۹٦ل، صفر۱۴۳۹هـ ق، نومبر۲۰۱۷م

پـه عـام ولس بمباري
او د اذهــانو اخــلال
د امریکایانو او مزدور رژیم مشترکات دي؟

ولسي فاجعې!
د بشریت دروغجن علمبردار...











از صنعت فحشاء
تا امپراطوری ابتذال

له امریکا سره د امنیتي تړون لغوه کیدل
د افغـــانانو د زړه غــږ دی؟

آیا ټرمپ لیونی دی
که د لیوني رول ورکړل شوی؟



- په سعودي کې د دولت تازه اقدامات
- چپه تعبیر
- واشنګټن ته د عبدالله د وروستي سفر په هکله
- دکابل جنرالان یې څه ځواب وایي ؟

له خپل مجاهد ولس سره
د اسلامي امارت همدردي او اخلاص!!




پنځلسم کال، لومړۍ، پرلپسې ۱۰۲مه ګڼه، عقرب۱۳۹٦ل، محرم۱٤۳۹هـ ق، نومبر۲۰۱۷م

**امتیاز :**

**دا مـتیازخـاونـد :** دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیـر :** عبـید تنـویر

**لـیکوال پـلاوی :** ډاکټر صا بر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

**ګډون :**

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۱۸۰ افغا نۍ |
| پا کستان : | ۲٤۰ کلـداري |
| امـریکا : | ٦۰ ډالـره |
| اروپـا : | ٦۰ یـورو |
| یـوه ګـڼـه : | ۱۵ افغـانۍ<br>۲۵ کلـداري |

**یادونه**

حـتمي نـه ده چې پـه څـرک کـې خـپرې شـوې مقالې داداري دپـالـیسي ترجماني وکړي هـره لیکنه دلـیکوال خـپل نـظـر دی.

**تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه**

**پتې :**

srak_111@yahoo.com

**علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپـرونه**

# لړلیک

بسم الله الرحمن الرحیم

سرمقاله

# په عام ولس بمباري او د اذهانو اخلال

## د امریکایانو او مزدور رژیم مشترکات دي ؟

داسلامي امارت مؤسیس مرحوم عالیقدر ملامحمدعمرمجاهد ( نورالله مرقده ) امریکایانوته نیږدې ۱۷ کاله وړاندې کله چې هغوئ دافغانستان داشغال لپاره متې بډوهلي په خطاب کې وئیلي وو چې افغانستان ته به پوځیان اووسلي راوړی، ښارونه به ونیسی اودلته به ولسونوته ځور اومرګ ژوبله ورواړوی ؛ خو دا خبره په یاد ولری چې افغانستان هضمولای اودځان کولای نشی دلته به ستاسې په مقابل کې له غرونو ، رغونو او اطرافو څخه بیرته دجهاد محکمي جبهي او مرکزونه له سره جوړشي او د افغانستان لویشت لویشت ځمکه به درته دمقاومت اومزاحمت تاوده سنګرونه وګرځي .

دمرحوم ملاصاحب له باور اوپیشبینی سره سم اوس جهاد هماغه مرحلې ته رسیدلی ، امریکایانوخپل ټول زور ،وحشت، اقتصاد او ډول ډول نیرنګونه وکارول پاتي افغانستان خولاپریږده چې یواځې د کابل ښارېې هم دمجاهدینوله هیبت او رعب څخه خوندي نشوکړای

دکرزي ددوري په مهال دامنیت شورا مشر ( سپنتا) دخپلویادښتونوپه کتاب کې لیکلي : امریکایي لوړپووچاراواکو افغانستان ته په اسانی سفرونه نشوکولای له طالبانوسخت ویریدل چې مبادا دبریدپلان یې ورته نه وي جوړکړي ؛ نوهمیشه به هغوئ یوناڅاپه په توره اویانیمه شپه افغانستان ته راتلل .

سپنتالیکلي په امریکایانودطالبانو ویره اوبیم دومره غالب وو چې اوباما اوبوش چې افغانستان ته راغلي وو یوغوړپ اوبه یې هم ونه څښلي اویوه کاشوغه خوراک یې هم ونکړ!!!

ځو اونی وړاندې چې کله د امریکا د بهرنیو چارو وزیر ( تیلرسن ) افغانستان ته په دوره راغی هغه بیا دومره ویرې او ډار اخیستی وو چې اشرف غني او ډاکټر عبدالله یې له کابیني سره ټول د سفارت ژوري ځمځي ته غوښتي وو اوهلته یې ورسره وکتل .

دغه حالت ثابتوي چې امریکایانو له ۱۷ کلن حضور اودزرګونوعسکروپه شتون کې بیاهم دځومره تزلزل اووارخطایي ښکار دي.

افغان مجاهدولس ته اوس لکه لمر ښکاره ده چې امریکایانودجګړې په میدان کې تاریخي شکست اوماتي لیدلي یوه ستراتیژي اونیرنګ یې هم دکار اوحساب ندی ، له بل لوري اجیره اردو، اربکیان اواردلیان یې ټول په دې موقف او لټه کې دي چې ځانونه په خپلومرکزونواوقرارګاوو کې خوندي اوپټ وساتي ،لدې زوره لویدلي چې دمجاهدینو په خلاف عملیات او جنګي پلان طرحه اوپیاده کړي .

اوس امریکایانو او مزدورانو ته یې په نظامي میدان کې دا چانس پاته دی چې په عام اوبې دفاع ولس هوایي بمباری او ډرون بریدونه وکړي.

په سیاسي او تبلیغاتي برخه کې یې هم یوې پرسوده اوشومي پلمي ته پناه وروړې چې ګواکې دطالبانو شاته پاکستان ولاړ دی او د بریدونو پلان هلته جوړوي.

خواشغالګر اوجواسیس یې بائید پوه شي چې دعام ولس په مرګ ژوبلې سره دوئ دځان لپاره په خپل لاس دنابودی کندي باسي ، ځکه له هرې ولسي مرګ ژوبلې سره امریکایي نفرت په ولس کې ځوبرابره زیاتیږي او دمجاهدینو لیکي قوي کیږي

له طالبانو سره دپاکستان دمرستو زهرجن تبلیغ یواځې هغه شمیرخلک بدرګه کوي اویا یې ذهن ته لویږي چې ګټې یې په همدغوبې معنا تبلیغاتوکې خوندي اوتودي دي اونورهرځوک پوهیږي چې پاکستان دامریکاپه دومره پراخ استخباراتي جال کې تصورنشي کیدای چې طالبان تجهیزاوامکانات په لاس کې ورکړي ، ځکه دپاکستان سیاسي او پوځي علائق او اړتیاوي تردې زیاتي ژوري اوعمیقي دي چې په عوض کې یې په اصطلاح مجاهدین وپالي.

نو ویلای شو چې دامریکایانو او مزدور رژیم ګډ ورستي حرکات یامشترکات چې دعام ولس اومسکوني سیمو بمباردول اویا مجاهدین د ګاونډي هیواد په ملاتړ رنګول دي دواړه ګامونه یې دناکامی، بزدلی اومایوسی ښکاره دلائل وړاندي کوي او دا خبره ثابتوي چې دمجاهدینو په مقابل هغوئ نور هیڅ چانس اوابتکار په لاس اوواک کې نلري .



# امریکایان

## خپل زیانونه او تلفات ولې پټوي؟

عبید عزیز

په افغانستان اوعراق کې چې امریکایانوته کوم تلفات اوزیانونه وراوښتي اویاوراړوي نه یې خپله وربانديي اعتراف کړی اونه یې رسنیوته داحق ورکړی چې پیښې په اصلي بڼه اوشکل خپري اوپه ځانګړي توګه خلکوته امریکایي زیانونه اوتلفات ورپه ګوته کړل شي.

دیوې موثقي احصایی له مخې په عراق کې دلسوکلونوپه اوږدوکې هروه ورځ په اوسط ډول له ۱۵ څخه تر۲۰ پوري امریکایي عسکروژل شوي ،دغه راز په افغانستان کې یې له تیرو۱٦ کلونوراهیسي داسې ورځ نده بیګاه شوي چې په امریکایي پوځیانودې لږترلږه شل مرګوني بریدونه نه وي ترسره شوي

خوترهغوچې مجاهدینودامریکایي پوځیانودوژل شووجسدونه اوټوټه شوو ټانګونواووسایطوتصاویراوژوندی صحني نه وي خپري کړي ، امریکایانوهمیشه هڅه کړي چې په خپلومرګ ژوبلوپرده اوخاوري واچوي .

نیویارک ټایمزلیکلي: امریکایانو په عراق کې دخپلوشکستونو اومرګ ژوبلو دنشرولو لپاره چاته هم اجازه نه ورکوله چې تصویرونه اوژوندی صحني یې ترینه جوړي او بیایي خپري کړي.

منبع وایي دټول عراق پیښي یواځي هغو٦ عکاسانو او ژورنالیستانو خپرولی اودوژل شوو امریکایي عسکروله جسدونو څخه یې فلم برداري کولای شوی کوم چې دپنتاګون له لوري دوئ ددغه کار لپاره موظف شوي وو.

دنیویارک ټایمز انټرنیټي ویب پاڼه وایي دویتنام په جنګ کې امریکایانودغه ډول محدودیتونه اوسانسورنه وو وضع کړي ، خودافغانستان اوعراق په جګړه کې په دې خبره کلک بندیزلګول شوی چې هیڅ خبري سرچینه اجازه نلري ترڅودوژل شوو امریکایانوعکسونه واخلي اویایې دجنازومراسم خپاره کړي.

سرچینه زیاتوي دامریکایي ولس عمومي ذهنیت دعراق اوهم دافغانستان دجګړې په باب داوه اواوس هم دی چې جګړه دې ودرول شي اوامریکایي پوځیان دې ژر ترژره راستانه کړل شي ، کچیري امریکایي ولس دخپلوهغوعسکروعکسونه ووینی چې لس کاله په عراق کې ووژل شول اونیږدي ۱۷ کاله په افغانستان هره ورځ ووژل کیږي نویوه لویه غوغابه جوړه شي اودیوې ورځې لپاره به هم اجازه ورنکړي چې امریکایان په افغانستان کې پاته شي.

نویارک ټایمزوایي د(زوریاه میلر ) په نامه یوامریکایي عکاس وو چې دعراق په جنګ یې دځووژل شووامریکایي عسکروتصویرونه اخیستي اوخپاره کړي وو ، نوموړی دپنتاګون له لوري دومره محکوم اوتهدیدشوچې له عراق څخه وویستل شو په هغه سربیره په ټوله نړئ کې په هغه پابندي ولګیده چې ترنامعلومي مودي پوري به سفرنشي کولای

په افغانستان کې خوبیاامریکایان اومزدوران یې دومره سپین سترګي دي چې ژوندی هغه پیښي هضمول غواړي اوپه تلفاتویې پرده اچوي چې لکه لمرښکاره اوروښانه دي

پـه همدې دو دریوورځوکې دلغمان دګمبیرۍ په پیښه کې چې یوه نفوذي عسکر ۱۲امریکایي پوځیان ځای پرځای ووژل اوورپسي دلوګر ولایت دخرواړپـه ولسوالۍ کـې دوه څرخـی (شـینوک ) هلیکفـتر چـــې مجاهدینوراوغورځولــه او۴۳ تنــه امریکایي عسکرپکې له منځه ولاړل خو دروا‌غجنـو او ذلیلو امریکایانوپه دواړوپیښـوکې انتهایي هڅه وکړه چې خاوري پـرې واړوي اوخاموشه یـې تیـري کــړي ،ولــې داسـلامي امــارت ویبــڼــاواوخوځنده مطبوعـاتي ټیمونـو دموثقـو او ژونـدیو راپورونـو او اثارو په خپرولو سره ددښمن مخ تور او فغان ولـس ته یې په اثبات ورسوله چې امریکایـان او مـزدوران یې څومره مکار او د حقائیقو له منلو څخه په منـډه او ویره کې دي.

مونږ دالله تعـالی پـه نجات ښـونکي فرمـان اووعـده کلـک باوراوعقیـده لروچـې مسلمانان بـه دکفارودټولوحربو اودسیسوپه وړاندي کـه هغـه پـه جنګ کې مخامخ وي اویاهم په تبلیغاتي میدان کې الله تعـالی بـه بــری اوسرلـوړي ورکـوي اوداسـلام دښمنان به له شکست اوذلت سره مخ کیږي.

متعال رب جَلَّجَلَالُهُ فرمایي

﴿ يُرِيدُونَ لِيُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ وَاللَّهُ مُتِمُّ نُورِهِ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ . هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَى وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ ﴾ [الصف: ۹].

ژبـاړه : دا کـافران اراده لـري چـې پـه خپلـو تبلیغاتو سره د الله جَلَّجَلَالُهُ د دین مخه ونیسي ، خو الله جَلَّجَلَالُهُ به خپل دین ته مخه ورکوي پوره به یـې کړي ، که څه هم کافران داهیڅ نـه خوښـوي ، الله جَلَّجَلَالُهُ خپل رسول په هدایة اوحق دین سره لیږلی دی ، ددې لپـاره چـې دالله جَلَّجَلَالُهُ دیـن پـه نـورو دینونو باندې غالبه کړي.

# هغه اعمال

## چې طیارې مو کشف کوي

امریکایانو په مخامخ جګړه کې شکست خوړلې اوس یې دجنګ ستراتیژۍ او تکتیک بـدل کـړي اوس غـواړي دڅارکرو ډرون او بـی ۵۲ طیارو په واسطه اودځمکني جاسوسانو په واسطه مجاهدین په نښه کړې او له منځه یې یوسي نو له تاسو څخه مو هم جدي غو ښتنه ده چې ددوښمن داتکتیک هـم فلـج کـړې بعضـې هغـه نقطـې چـې دوښـمن نشـی کـولاې مجاهدین ورباندې په نښه کړې.

۱ــمجاهدین باید ډله ډله ونه ګرځې.

۲ــد الکترونیکې وسـیلو پـه واسـطه ارتبـاط ونـه نیسـې کـه زیـات ضرورت وه تر اړیکې وروسته دې بطرې ورنه وباسې. لکه تیلفون او مخابره

۳ــکله چې غواړې اړیکـه ونیسـې خپـل موقیعت تغیر کـړې او تـر اړیکې وروسته خامخا هغه ځاې ترک کړې.

٤ــله هغه لباس څخه استفاده مه کوې کوم چې خـاص دمجاهـدینو پورې ارتباط لری ځکه دوښمن کوشش کوې چې څه شی درته پکې ځاې پرځاې کړې.

٤ ــاو هغو وسایلو څخه چې ممنوع دې استفاده مـه کـوې ځکـه چـې طیارې کولایشې تاسو کشف کړې لکه په بعضې ساحو کې موټر سایکل

۵ــ کوشش وکړې چې خپله وسله دڅادرلاندې وساتې.

٦ــکالې هرځاې مه باسې او هرځاې خپله دسورلې وسیله مـه دروې چې دغمې په شان آلې جاسوسان درته پکې کینږدې.

۷ــکالې په شناخته خیاط ګنډې

۸ــپه یو مشخص ځاې کې مه اوسیږې.

۹ــمرکزونه مو مه افشآکوې.

۱۰ــمرکز ته درتلوونکې ښه تالاشې کوې.

۱۱ــدطیارو په لیدلو تغیر دمو قیعت کوې.

۱۲ــدفسبوک په کارولو کې هم محتاط اوسې آیډې په ایمیل جـوړه کړې .



# د کندوز او تګاب فاجعه!
# د بشریت درواغجن علمبردار. . .

امید

پنځه ورځې وړاندې دکندوز ولایت چهادرې ولسوالۍ په دریو کلیو( وردګ، قتل عام، عیسی خیلو) اوهم دکاپیساولایت اړوند دتګاب په ولسوالۍ کې د امریکایانو له لوري دوحشیانه او ظالمانه بمبارد له امله ۱۴ تنه مړه او ۱۳ تنه ژوبل شول

دخبري سرچینو په قول: په وژلو شویو کې ډیری یې میرمنې او ماشومان دي؛ دسیمې خلکو رسنیو ته ویلي: چې دبمبارد ځخه وړاندې د وردګ او عیسی خیلو کلیو نه خلک دجنګ له ډاره دخپلو کورو ځخه وتلي وو او په (قتل عام) کلي خلک پاتې وو چې په هغوی باندې دامریکایانو لخوا بمبارد اوشو او له امله یې پورته مرګ ژوبله رامنځته شوه

دکندوز داجیرې ولایتي شورۍ وکیل محمد نصرتیار هم منلي اوپخلی یې کړی چې قتل عام کلي کې امریکایانو قتل عام کړی ! او دعامو خلکو کورونه یې قصداً په نښه کړي او بې دفاع ولسي خلک یې په شهادت رسولي

ښکاره ده دکندوز په چهادره کې له څه مودې راهیسې دامریکایې یرغلګرو په ملتیا ګوډاګي رژیم ړانده عملیات پیل کړي چې په وجه یې لوی شمیر ولسيـ خلک متضررـ شوي او دخپلو کورونو پریښودو ته یې اړیستلي او بیرته پاتې مالونه اوشتمنۍ یې دغلام رژیم عسکرو لخوا چور او تالا شوي

په مقابل کې طالبان هم مقاومت کوي او دګوډاګي رژیم ځواکونو ته یې درونـد شمیر ځاني او مالي تلفات اړولي او هرکله چې په کومه سیمه کې بهرنیو ځواکونوته تلفات ورسي هغوی دخپل وحشي عادت له مخې دعامو خلکو نه غچ اخلیدهغوی کورونه او کلیکنډواله کوي

دډارن دښمن پخوانی عادت دی چې په مخامخ جنګ کې کله دتلفاتو سره مخ شي، سملاسي په ناځوانمردانه مرګونو لاس پوري کوي او دانتقام اخستلو په جذبه کې بیا دا نه ګوري چې طالب څوک دی او عام سړی څوک بس هر افغان چې ورته په نظر ورزي هغه ورته دښمن ښکاري او وژني یې.

ګوډاکی رژیم چې دافغانستان دزعامت دعوه کوي،نه په دغسي وژنو کوم خفګان ښکاره کوي او نه په راتلونکي کې یې دمخنیوي هڅه کوي، بلکې په پوره بې شرمۍ دامریکایانو وحشتونه او جنایتونه استقبالوي او دهغوی ځخه مننه کوي، له کله نه چې امریکا اشرف غني او ګل مرجان( عبد الله) واک ته رسولي، دامریکایانو له لوري څومره جنایتونه ترسره شوي د دواړو له لوری یوهم ندی غندل شوی خو که بل پلو امریکا کې هسې یوه معمولي غوندې پیښهرامنځته شي،په کلیسا یا دشرابو په دوکان کومه بلا راپریوته ګل مرجان او مرګغني یې په اړه دخواخوږۍ پیغام په لیږلو کې سیالي کوي

! لعنت شه! په دواړو غلامانو! چې هره ورځ یې په وطن کې سلګونه افغانان دامریکایانو لخوا وژل کېږي او دوی وربانـدې ځانونه کاڼه او چوپ نیولي او د دانی امریکا یې سړي په وژل کیدو د خواخوږیو پیغامونو په لیږلو کې په یوبل دسبقت کوښښ کوي...

غلامې خو څه لکې نلري !! ددینه پورته غلامې نشته چې دامریکا دبهرنیو چارو وزیر دواړه افغانستان کې خپلې پوځې هډې ته ور غواړي دواړه په ظرف دځو دقیقو کې ځانونه رسوي او دهغه په مخ کې لاس په نامه او احترام کیني

راځو دیته چې دمرګغني او ګل مرجان په راتلو دافغانانو په وژلو کې سل په سل کې زیاتوالی راغلی او امریکا بې لـه پوښتنې او دلیله هرځای او هر کله چې غواړي بمباري کـوي پـه لسګونو اوسلګونو افغانان په بې رحمانه توګه پـه شـهادت رسـوي ودان کلی او کورونه کنډوالې کوي ،څوک جرئت نه لري چې پوښتنه وکړي اخر په کوم جرم دومره خلک تاسو ووژل؟ ایـا ماشـومانو او ښځو هم ترهګرې کوله؟

حقیقت دادی چې ددینه وړاندې په افغان ولس دومره بده ورځ نه وه راغلې کومه چې دمرګغني او ګل مرجـان دګـډ واک وروسته راغله ، نن دافغان وینـه داوبـو نـه هـم ارزانـه تویېږي،افغانانږدومره دبې ننګه ، بې پتـه او بـې ابـرو نـه وو څومره چې نن دي ... نه پوهیږو چې راتلونکي عواقب بـه یـې څه وي؟

البته یوشی د ډاډ وړ دی چې نن هم په زرګونو ځوانانو خپل سرونه په لاسونو کې ددې لپاره نیولي چې خپل ولس او خاورې ته له اشـغاله ازادې ور کـړي، خپـل وطـن دکفـر لـه سلطې وژغورې دخپلـو مظلومـانو ورونـو غـچ لـه امریکایـانو واخلي ... په رښتیا هم دا یـو د ډاډوړ ګـام دی چـې طالبـانو ددنیا ټول هوسونه او خوندونـه شـاته کـړي او دخپـل ملـت دبقاء او هوساینې په نیت یې دقربـانـی میـدان تـه دانګـلي موږ دهغوی دې عزم ته سـلام کـوو او ترخنـګ یـې پـه هـر افغان غږ کوو چې دطالب څخه ننګه او ملاتړ وکړئ کنه سبا به ارمان کوئ او وخت به تیر وي ... بیا که هـره څـومره ژړا او فریاد ونه کوئ څه به لاس ته نه درزي نن فرصت شته چې دخپل راتلونکي په اړه دخپلو نسـلو دراتلـونکي پـه اړه پریکـړه وکړئ او خپله وجیبه ترسره کړئ کنه ستاسو ننی چوپتیا بـه دسبا ورځې پیغور وي.

بل لورته افغانستان کې دعامو خلکو مـخ پرزیاتیـدونکو وژنو د بشري حقوقو دنړیوالو علمبردا رانو خاموشې هـم دغنـدلو او محکومولو وړده ښکاري چې دبشري حقوقو ددفاع په نوم روان تبلیغ اوشعارونه حقیقت نلري، او په دې نامه فعالې ادارې هیڅ ازادې نلري هغوی دامریکا یـانو فرمایشونه تبلیغـوي او پـه دې علاوه بل هدف او مرام نلري

دنړیوالې میډیا کردار هم دغندنې وړدی چې همیش یې دمیډیا دازادی په نوم دغاصبو امریکایا نو لپاره فرمایشونه تبلیغ کړي او نړۍ کې دمظلومو او بې دفاع خلکو غـږ زنـدی کـوي او نه غواړي چې نړیوال له حقایقونه خبر شي بلکې دنړیوالو اذهـان په اغفال کې ساتي

## سمندر؛ ولې شین ښکاري؟

ژباړه: نور احمد شاهین

د لمر وړانګې اووه رنګه نور (سور، نارنجي، ژیړ، شین...) په خپل ترکیب کې لري؛ له دغه رنګونو څخه اوږده څپه لرونکی نور (سور، نارنجي او ژیړ) د صفا اوبو له لوري په شدت جذبیږي، بالمقابل شین نور (لنډ څپه لرونکی نور) اوبو کې نه جذبیږي او بېرته یې منعکسوي؛ نو ځکه کله چې د لمر وړانګې په سمندرونو لګیږي، له شنه رنګ پرته ټول رنګونه جذبیږي او شین رنګه نور بېرته انعکاس کوي .

زموږ تر ستر ګو فقط د سمندر له لوري منعکس شوی شین رنګ نور رسیږي او حکم کوو چې سمندر شین دی، خو پـه اصل کې اوبه رنګ نلري او سمندر له اوبو جوړ دی. آسمان هم پـه همدې دلیل شین برېښي، د آسمان او سمندر د شین والي حادثـه یوه ده، خو پـه جلا ، جلا توګه واقع کیږي او له یوه بل سره هیڅ راز تړاو نلري. پـه دواړو (هم سمندر او هم آسمان) کې اوږده څپه لرونکی نور جذبیږي او لنډ څپه لرونکی نور منعکسیږي او لـه همدې وجهې شنه برېښي .

هېره دې نه وي چې دا حادثـه پـه خالصو او صافو اوبو کې ترسره کیږي، کـه اوبـه لـه ختـو، خځلو او ناپاکیو څخه مالامال وي، نور تیت او پـرک کیږي او نشي کېدلی جذب او منعکس شي، نو له همدې امله د اوبو شین والی له منځه وړي.

# آیا رښتیا ده

## که امریکا نه وي افغانستان نشته ؟!

م، شفیق

پرون مې له یوه دوست سره د هېواد پر روانه وضعه خبرې وې، د دواړو نظرونه پر دې سره شریك وو چې هېواد له بده مرغه په بد لوري روان دی، خو دغه دوست مې ډېره په تاکید دغه خبره کوله چې (که امریکا نه وي افغانستان نشته(!

زما خپله تجربه دا ده چې کله د هېواد امنیتي – سیاسي وضعیت داسې د خرابۍ لور ته لاړ شي چې چارواکي یې توجېه کولای او پټولای نشي، په ولس کې د امریکا په درېځ او ناغېړیو نیوکې او اعتراضونه زور اخلي. بیا ناڅاپه د حکومتي یارانو له خولو همدغه خبره زیاته اورېدل کېږي چې امریکا مو نظام په پښو درولی، که امریکا نه وي نو زموږ هېواد هم برباد دی، دا اوس زموږ نظام د امریکا په پوځي او مالي مرستو تکیه دی که دغه مرستې نه وي په یوه اونۍ کې هر څه ختم دي. که په ریښتینې معنا وضعه وارزوو په ریښتیا هم په دې استدلال کې وزن دی، دکابل حکومت ته نور له امریکا پرته هېڅ پاتې نه دي. ولس مخ ترې اړولی، په لویه کچه ځوانان مو چې وزګار دي د حکومت خلاف احساسات لري، مالي سرچینې مو په ریښتیا هم تر ډېره د بهرنیو په تېره د امریکا تر مرستو پورې محدودې دي. که د امریکا وسلې نه وي، تېل یې نه وي، د بې پیلوټه الوتکو بمبارۍ یې نه وي، او د پوځیانو تنخوا نه وي چې دا ټول امریکا ورکوي، بیا خو ښکاره ده چې حکومت پخپله په ګونډو دی.

یو بل تریخ واقعیت دا هم دی چې لږ تر لږه په اوسنۍ وضعه کې نه حکومتي ټیم، نه کوم ګوند او نه کوم ائتلاف ولس ته د ژغورنې محور دی او پر دې ترخه حقیقت باید اعتراف وکړو چې که دغه نیم بنده حالت هم رنګ شي افغانان به په داسې غمیزه واوړي چې د تېر تاریخ ټولې غمیزې به ورته هېڅ وي.

دا خو د ستونزې یو اړخ دی چې د حکومت او امریکا پلویان پرې استدلال کوي او دغه استدلال تر ډېره حده بېځایه هم نه دی. راځو د دې لانجې بل اړخ ته.

د غوایي د اوومې له کودتا وړاندې د داوود خان او تر هغه وړاندې د پخواني پاچا محمد ظاهر شاه واکمنۍ وې. افغانستان وروسته پاتې ؤ، ساده ژوند یې درلود. نه امریکا وه او نه شوروي اتحاد، خو افغانستان د یوه خپلواك هېواد په توګه په نړیواله کچه مطرح ؤ او پېژندل کېدو.

دلته ټول نړیوال اصول پلي کېدل، بهرنیان بې وېزې او اجازې هېواد ته نه شوای راتلای، د بهرنیو مشرانو د سفر پر مهال د پروتوکول له مخې اصول رعایت کېدل، د بهرنیو چارو



وزیر ته د ده سیال ورتلو او کوم ولسمشر او پاچا تـه بـه پاچـا هرکلي وایه.

د غوایي له کودتا او وروسته د پخواني شوروي لـه یرغل سره زموږ د هېواد د بربادۍ کیسه پیل شوه، خو د لوی الله په ځانګړې لورېنه او د ولس د قربانیو او شهامت په زور چې شوروي پوځونه له هېواده وشړل شول. دغه ګواښ بیـا پایتـه ورسېد. د شوروي پوځ له وتلو وروسته مجاهـدینو خپلمنځـي جګړې پیـل کـړې. بېدرېغـه مرګونـه او ورانـۍ راغلې چـې د تاسـف وړ دي، خـو افغانسـتان ؤ، د طالبانواسلامي امـارت راغـی. کـورنۍ جګـړې دوام درلـود، د نـړۍ پـه کچـه افغـان حکومت یوازې درې هېوادونو په رسمیت پېژانده،که څه هـم فقـر او بـې وزلـۍ وه، نـه امریکـا وه او نـه روسـیه وه، خـو افغانستان ؤ.

کله چې د سپتمبر له پېښو وروسـته د ۲۰۰۱ ز د اکتوبر پر اوومه امریکا پر افغانستان یرغل راوړ. وروسـته د نړیـوالې ټولنې تر اشراف لاندې د ناټو تر چوکاټ لاندې تر یو نیم سل زرو زیـات پوځونـه راغلـل، پـه ملیـاردونو ډالـر راغلـل، تقریبـاً ټـولې نـړۍ لـه افغانسـتان سره د بیـارغونې او باثباتـه نظـام جوړولو ژمنې وکړې، اوس ١٦ کاله وروسـته چـې د امریکـایي ځواکونو له وتلو سره دغه خبره مطرح کېږي چـې کـه امریکـا نه وي نو افغانستان نشـته، د دې معنـا دا ده چـې پـه تېـرو ١٦ کلونو کې امریکا دلتـه یـوازې د دې لپـاره کـار کـړی چـې د افغانـانو مـلي غـرور او شـهامت ورختـم کـړي، پـر یـو بـل یـې اعتماد له منځه یوسي. پـر یـوه دایمـي نـاروغ یې بدل کړي چې پردي سیروم ورته لګېـدلي وي. که داسې وي بیـا خـو د امریکـا پـر پـاتې کېدو نه د خپل رنځ پـه اړه جـدي فکـر بایـد وکړو. امریکا چې نـن کومـه لاره غـوره کـړې، هغـه خامخـا لـه ټکـر سره مـخ ده، امریکـا بـه خامخا له افغانستانه درومي، نـو افغانـان بایـد سر له اوسه د خپل برخلیك پـه اړه مسـوولانه فکر وکـړي، مسـوولانه فکـر همدغـه دی چـې ولس د راټولېـدو محـور ومـومي بیـا د ژونـد د دوام دروازې پخپله ورته پرانیستې دي، راځـئ افغانـانو خپـل هېواد د پردیو پر ځای پخپلو متو ورغوو، پردي موږ نښه یـان کوي، په غلامۍ مو روږدي کـوي. دا هېڅکلـه د یـوه ولـس د نیکمرغۍ لاره نه ده. امریکا چې څـومره زمـوږ پـه هېـواد کـې پاتې کېږي هومره به مو ولـس پاشـلی، لـه غـروره لویـدلی، لـه ارزښتونو او معنوي ځواکه محروم او بې برخې کېږي.

## د امام شافعي رحمه الله له غوره وینـاوو څخه: نوموړی فرمایي:

ـ په ټولو اختلافاتو کې د برلاسي هڅه مه کوه ځکه کله کله د موقفونو او دریځونو له ګټلو څخه د زړونو تر لاسه کول غوره وي.

ـ هغه پلونه مه ورانـوه چـې جـوړ کـړي دې وي. او پـرې تیر شوی یې، ځکه کیدای شي یـوه ورځ د بیرتـه را ګرځېـدو لپاره ورته اړ شې.

ـ تل غلطي بده ګڼه، خو غلطي کونکی بد مه اِبسَوَه.

ـ د زړه لـه تلـه ګنـاه بـده وبولـه، خـو لـه ګناهکـار سره مهربانه اوسه او ګزاره ور سره کوه.

ـ په خبره نیوکه کـوه خـو د خبـره کـونکي درنـاوی کـوه. ځکه زموږ دنده داده چې نـاروغي لـه منځـه یوسو، نـه داچـې ناروغ له منځه یوسو.



# ایا امریکا او افغانستان

## شریکې ګټې او موخې لري؟

مبصر م

امریکا د ۲۰۰۱ کال د اکتوبر پر ۷مه زموږ پر هېواد په دې پلمه یرغل وکړ چې د القاعده مشر اسامه بن لادن دلته د اسلامي امارت تر سیوري لاندې ژوند کاوه او د القاعده غړیو له همدې ځایه د امریکا پر سوداګریزو برجونو او پنټاګون برید پلان کړی ؤ.

وروسته امریکا د نوي نظام د جوړولو له ژمنو سره دلته د یوه نوي بهیر پروسه پیل کړه. افغان ولس فکرکاوه چې امریکازموږ غم اخیستی ، خو د وخت په تېرېدا دا معلومه شوه چې امریکا دلته خپل اهداف درلودل او زموږ ولس د تاریخ تر ټولو خطرناک پړاو ته لوېدلی دی. د امریکا او افغانستان د اړیکو بڼه هغسې نه ده چې دکابل حکومت او نظام یې تعریفوي، هغسې هم نه ده چې په نړیوالو سیاسي محافلو کې یادېږي. هغه څه دی چې د امریکا ولسمشر- او نور چارواکي یې تعریفوي او ساده بڼه یې هغه څه ده چې زموږ عام ولس یې ویني. که په هېواد کې ریښتینې ټولپوښتنه وشي پرېکنده اکثریت هېوادوال به د امریکا او نړیوالې ټولنې د کړنو پر خلاف نظر ورکړي. ځکه امریکا دلته هغه څه ترسره کړي چې زموږ ولس یې نه غواړي.

دکابل حکومت او سیاستوال په دروغو لاپې کوي چې امریکا او نړیواله ټولنه د دوی په اصطلاح (نړیوال دوستان) زموږ شریکان دی.

له امریکا او ناټو سره زموږ څه شی شریك دي؟ کومې ګټې او ارمانونه دي چې زموږ دغه دعوه به ریښتیا ثابته کړي؟

له ترهګرۍ سره مبارزه؟ اقتصادي ګټې، شریکه جغرافیه، ارزښتونه او که بل څه؟

واقیعت دا دی چې امریکا د نړۍ د یوازیني لوی ځواک په توګه، اوس د امریکایي ستراتیژیست بریژنسکي په قول دلته زموږ سیمې ته راغلې جګړې کوي چې د یوه لوی ځواک په توګه پاتې شي. امریکا له ترهګرۍ څخه د وسیلې په توګه کار اخلي خو زموږ د هېواد برخلیك ګواښي.

کابل واکمن یو هدف هم نه لري، خو خارجي ځواکونه لوی اهداف خامخا لري! معنا دا چې امریکا د نړیوال ځواک په توګه چې اهداف او موخې لري، افغانان ځوک دي چې له دوی سره ځانونه په دې موخو کې شریک کړي. واقعیت همدغه دی چې د نړیوال ځواك او یوه بحران ځپلي هېواد ترمنځ د عادلانه او مساوي حیثیت د ملګرتیا هېڅ مجال نشته.

دا ډېر لوی دروغ دي چې دع - غ چارواکي له امریکا سره د ګډو موخو او شراکتونو خبره کوي. زموږ د ولس تر ټولو ستر ارمان سوله او د جګړې پایته رسېدل دي. زموږ د



ولس لوی ارمان له ځو ځان پلورو پرته د ملي یووالي په رڼا کې ګډ ژوند دی. په داسې حال کې چې امریکا پر نړۍ د واکمنۍ خوب ویني، د دوی ګټې ډېرې ښکاره زموږ د ولس له ارمانونو سره په ټکر کې دي. د دې خوب د پوره کېدو لپاره له هرې وسیلې کار اخلي، د ښکېلاک موخې معلومې دي، د هغو د لاسته راوړو ځینې طریقې یې پخوانۍ دي، ځینې یې د هر ښکېلاکي ځواک خپل نوښت دی.

**امریکا نن د نړۍ د یوازني لوی ځواک په توګه د ولسونو د ښکېل کولو او ښکېل ساتلو لپاره تر پخوانیو ځواکونو ډېرې زیاتې خطرناکې وسیلې او لارې چارې لري.**

**د ولسونو ترمنځ اختلافونو ته لمن وهل، د هېوادونو تجزیه او د قومي او مذهبي تعصبونو پر بنسټ د ولسونو له برخلیک سره لوبې د دوی معمول لارې دي.**

دوه کاله وړاندې چې د جرمني د صدراعظمې د محرمو مکالمو خبره افشاه شوه چې امریکا یې ثبتوي، دسي آی اې پخوني مامور ادوارد سنودن په دې تړاو ډېر رازونه افشا کړل.

امریکا چې د خپلو متحدینو د چارواکیو پټې او محرم مکالمې ثبتوي پر نورو به څه رحم وکړي. امپراتوري او زبرځواک ته زور حق دی.

د ۲۰۱٦ ز د اپریل په وروستۍ اونۍ کې د سي آی اې پخواني رئیس مایکل هایډن خبرداری ورکړ چې د منځني ختیځ اوسنۍ لانجې د سوریې او عراق په شمول ځو هېوادونه تجزیه کولای شي. مایکل هایډن وایي چې د ورسای او سایکس پیکو تړونونو پر بنسټ رامنځته شوې پولې د له منځه تلو په حال کې دي او سوریه، عراق او لبنان به د اوس په څېر پاتې نشي.. د افغانستان او سیمې د تجزیې په اړه د پنټاګون په رسمي ژورنال کې درې لسیزې پخوا نقشې خپرې شوې دي. د تجزیې خبرې افسانې نه دي، د سوډان، شرقي تیمور او یوګوسلاویا د تجزیې پېښې همدغه زموږ د اوسني نسل د مهال خبرې دي.

زموږ په هېواد کې د امریکا په مشرۍ جګړمار ائتلاف تېر ۱٦ کلونو پر همدې ګواه دي چې امریکا په سیمه کې نور اهداف لري، د هغو لاسته راوړل جګړو او جګړه مارو ډلو ته اړتیا لري، اوس هغه پړاو را رسېدلی چې امریکا د داعش ځپلو په نامه په سیمه کې خپلو موخو ته د رسېدو لاره ونیسي، د دې لپاره زموږ هېواد د انتقال د مرکز په توګه ورته مهم دی.

که ځوك له امریکایي پروژې سره همګام د افغانستان د خیر خوبونه ویني، ځانونه تېر باسي، نور لوبه یو طرفه هم نه ده، د سیمې هېوادونه د امریکا پر موخو پوهېدلي او نور له ترهګرۍ سره د مبارزې شعار ډېر شرمېدلی دی.



# اسلامي ژورنالیزم

ابن مبارك احمدزی

موږ نه دي ويلي چې محض ژورناليزم ناروا فن او كسب دی بلكې موږ د اسلام په رڼا كې د ژورناليزم له پاره كار كول غواړو.

داسلامي ژورناليزم موخه هم د شر ختمول، د حق اواز پورته كول او د مسلمانانو په منځ كې د مشرانو او كشرانو نيمګړتياوې ورپه ګوته كول دي دا ځكه چې حضرت عمر/علي رضي الله عنه فرمايي: هغه څوک، چې زموږ عيبونه را ښيي الله جل جلاله دې پرې ورحميږي.

يو ژورناليست به دا سې خبرونه او اطلاعات نه خپروي، چې په هغو سره په اسلامي امت كې د اوربخركي شيندل كېږي او ترمنځ يې د جنګ او جګړو اورته لمن وهل كېږي بلكې يو داسې نظر به وړاندي كوي، چې په هغه سره اسلامي امت د نړۍ غوره پوهه ترلاسه كړي، او په مټ يې خپل پيغام ټولو نړۍ والو ته ورسوي.

اسلام ژورناليست ته د يو معلم حيثيت وركړی ده، چې د ټولنې اخلاقي ارزښتونه او د عدل او انصاف لوړ اصول خوندي كړي، چې د فكري او نظري ښوونو په مټ د ټولنې ګټې خوندي پاته شي او د وګړو ذهنونه سمې لارې ته برابرشي.

د يو ژورناليست اساسي وظيفه همداده، چې په ټولنه كې اخلاقي نيمګړتياوې او بد اخلاقي له منځه يوسي، پاكي او سادګي رامنځته كړي.

نو په همدې توګه د حقيقت څخه ليرې، ناروا او بې ځايه اطلاعات او مسايل، چې د هغو له امله په ټولنه كې د فساد د خپرېدو وېره وي خپرول يې هم سم كار نه ده، د حالاتو، پېښو او حقايقو خبر ذهن او فكر ته د روښنايي مشال لري او كوم خبرونه، چې فكر ته د روښنايي او رڼا پر ځای تياره وركوي د هغو خپرول او عامول هم ښه كار نه ده. ژورناليزم دا دواړه كارونه كوي او كولای يې شي، خو ښه او اسلامي ژورناليزم هغه ده، چې فكر ته روښنايي او رڼا وركړي، او له رڼا څخه محرومو كسانو ته رڼا ور ډالۍ كړي

د اشرف غني اداره دراډيو، ټلويزون، ورځپاڼو، مجلو، تبليغاتي پاڼو، انلاين ميډيا (سايټونه) په لويو ښارونو او لويو لارو كې پر غټو تختو ليكل شوې اعلانو او دا ډول د كورنيو او نړيوالو كنفرانسو له لارې هڅه كوي چې د افغانانو او نړيوالو ملاتړ ولري او لري يې هم.

طالبان هم ورته هڅې كوي مګر دهغوی امكانات ډېر كم دي، ولې داسې معلوميږی چې هغوی ډېر سخت كار كوي، ځكه خو د كمو امكاناتو څخه اعظمي استفاده كوي، سړی ويلای شي چې حكومت امكانات ډېرلري مګر استفاده كمه، او طالب امكانات كم مګر استفاده زياته كوي

اسلامي امارت اوسمهال ټلويزون نه لري، راډيو نه لري، ورځپاڼه نه لري، يوازې ډير كار د انلاين ميډيا په مټ كوي، خپل رسمي سايټ (الامارة) لري چې هغه هم داسې معلوميږی



يوائې سياسي کسان يې ګوري، او ډېر ليدونکې له دې امله هم نه لري چې وخت په وخت دغه سايټ له تخنيکي ستونزو سره مخ وي، د الصمود په نوم مجله لري، چې عربي ده، د افغانستان په داخل کې مشکله ده چې پيدا شي، د څرک، مورچل او حقيقت مجلې لري چې د دولت تر واک لاندې سيمو کې يې موندل نا ممکن او يا محال دي.

که افغان حکومت او نړيوال د بيان د ازادۍ او رسنيو د پرمختګ دعوه کوي، نو ويلی شو چې دوی په دغه خبره کې رښتوني نه دي،

د افغان ولس له ډېرو ځوانانو، پېغلو، محصلينو، زده کوونکو، سپينږيرو او سپين سرو دا ډول له روشنفکره، مذهبي او روحاني طبقې خلکو سره د طالبانو په اړه ډول ډول سوالونه او پوښتنې شته، ولې هغوی د دې چانس نه لري چې د ولس پوښتنو ته ځواب ووايي، څومره به ښه وای چې پردې پياله رسنۍ غلامې نه وای، او پر دغې مهمې موضوع يې کار کړی وای، داسې زمينه يې برابره کړې وای چې طالبانو په مخامخ ډول د افغان ولس پوښتنو ته ځواب ويلی وای.

د دې ګټه به دا وه چې عامو خلکو او آن د طالبانو مخالفينو به د هغوی په اړه سم پوهاوی درلود، قضاوت به يې هم سم وو، او له هغوی سره د تعامل په اړه به پاليسي جوړوونکو هم واقعبينانه پرېکړې کولی شوای.

افغان حکومت چې له مختلفو لارو هڅه کوي ولس ته خپل نظر او پروګرام هغه هم په نيمګړي ډول وړاندې کړي، ولې د بيان د ازادۍ او رسنيو د بې پرېتوب له مخې طالبانو ته افغان حکومت او نړيوال اجازه نه ورکوی چې هغوی هم د ځينو پوښتنو په اړه د رسنيو د لارې سپيناوی وکړي؟ دا خو لا څه کوې چې څو څو ځله د ذبيح الله مجاهد د ټويټر آدرس هم فعاليت ته پرې نښودل شو.

څومره په ښه خبره وه چې د رسنيو له خوا د شرارت پر ځای د اسلامي امارت ويندويانو ته د خبرو او سپيناوي فرصت او چانس ورکړل شوی وی خو افسوس! ، څومره به ښه وای چې د طالب او افغان حکومت ويندويانو له خوا په ژوندي ډول د خلکو پوښتنو ته ځواب ويل کيدلای (ممکن د سکايپ کنفرانس او يا ويډيو کنفرانس د لارې هغه چا ته زمينه برابره شي چې امنيتي ستونزه لري) . زه په دې ډاډه يم که داسې چاپېريال رامنځته شي چې په هغه کې د طالبانو رسنيز استازي او د حکومت پلويان حاضر وي او خبري کنفرانس وړاندې کړي، د خلکو پوښتنو ته ځواب ووايي، د خپلې برحقې مبارزې د مشروعيت دلايل وړاندې کړي او د افغان حکومت د استازو تورونه رد کړي نو د ډېرو خلکو ملاتړ به په لږ وخت کې له ځان سره ولري او پر حکومت به د خلکو باور ټيټې فيصدۍ ته را ښکته شي، خو دا به چا ته ووايې؟؟ يو داسې چا ته چې سر تر پښو په استحمار کې لغتکې وهي هغه ته؟

نصيحت پر سنګيدلو اثر نه کا
بيهوده پير محمد دُروهې په سنګ

# آیا ټرمپ لیونی دی

## که د لیوني رول ورکړل شوی؟

قاري حبيب

په ۲۰۱٦ میلادي کال کې کله چې ډونالډ ټرامپ په لومړي ځل په امریکا کې د ولسمشرۍ د نوماند په حیث د عامه انظارو مخې ته راغی ورسره د نوموړي د لیونیو او بې سنجشه اظهاراتو او خبرو سلسله هم پیل شوه.

ټرمپ لومړی د خپلې دې خبرې له امله مشهور شو چې پلویانو یې په یوه سروې کې وویل چې دوی د پخواني ولسمشر ابراهام لینکن لخوا په امریکا کې د تورپوستو د غلامۍ له لغو کولو سره مخالفت لري. ټرمپ وروسته وویل چې له جنوبي ګاونډي هیواد مکسیکو سره به په سرحد دیوال ووهي او که اړتیا شي په سوریه کې به په داعش اټومي بم وغورځوي.

په دې ډول ټرمپ چې له دې وړاندې په امریکایي رسنیز او اقتصادي محیط کې د یوه زیرک پانګوال او په خبره پوه نطاق په حیث مشهور و ناڅاپه د لیونتوب ماسک واغوست او په اپلتو یې پیل وکړ. د ټرمپ ناڅاپي لیوني کېدل، ولسمشرۍ ته کاندیدل او بیا په نا اټکله توګه په خپلو سیالانو برلاسي کېدل داسې ښيي چې دا ټول څه د امریکایي ټینک ټانک مرکزونو د یوې ژورې طرحې په پایله کې راپیښ شوي تر څو په راتلونکې کې یو داسې څوک د امریکا په ولسمشرۍ راولي چې یوازې د رعب ، لیونتوب او بې باکۍ له لارې یې د امریکا نړیوال عزائم پوره او دښمنان پرته له جنګ او وسلو کارولو مرعوب کړي.

ټرمپ له خپلو لیونیو اظهاراتو، ګډوډو خبرو ، ښکنځلو او اپلتو سره بالاخره په درون حزبي او د ولسمشرۍ په نهایي ټاکنو کې بریالی او د سپینې ماڼۍ واک یې ترلاسه کړ.د ټرمپ په ولسمشرۍ نږدې کال اوړي خو لا هم هغه د امریکا ولسمشر په توګه خپل لیونتوب ته دوام ورکوي. ټرمپ په ټویټر کې کټ مټ د یوه ضدي ماشوم په شان چلند کوي. په هر خبره باد اخلي، هر چا ته عکس العمل ښيي، له رسنیو سره جنجالونه، ایران او شمالي کوریا ته خښمیدل او د ټاکنو په مهال په خپلې سیالي هیلري کلنټن داسې لفظي بریدونه کوي چې د نړیوال ډیپلوماتیک عرف او سیاسي آدابو سره په هیڅ ډول سمون نلري.

سږ کال د ملل متحد په نړیواله اسامبله کې ټرمپ د ملګرو ملتونو د عمومي مجلس له ستیج څخه یوه داسې وینا وړاندې کړه چې حتی د امریکا ډېرو ډیپلوماتانو هم ورباندې د شرم احساس وکړ. ټرمپ وویل چې شمالي کوریا به د نړۍ له نقشې حذف او په یو مخیز ډول نابوده کړي ایران ته یې هم ورته ګواښونه وکړل او خپل حماقت یې تر پخوا په لوړ کیفیت سره د نړۍ نندارې ته کېښود.

د ټرمپ لیونتوب او لیونۍ خبرې په خپل ځای، خو پوښتنه داده چې آیا ټرمپ واقعا لیونی دی؟ آیا د امریکا ټاکنیز معیارونه دومره لویدلي چې یو لیونی هم کولای شي د دموکراسۍ له برکته د سپینې ماڼۍ واک خپل کړي؟ آیا د امریکا ستراتیژیک بنسټونه او په اصطلاح سټبلیشمنټ ددې اجازه ورکوي چې د نړۍ تر ټولو د ستر اټومي طاقت او مجهز پوځ واک د یوه لیوني په ګورت ورکړي؟؟

دغه سوالیو ته که ژور نظر وکړو نو ځواب منفي راوځي. نه هیڅکله نه، دا اصلا امکان نلري. ځکه لیوني ته په هره ټولنه کې غیرمکلف ویل کېږي او ډېر

ادنی مسؤلیتونه هم نه ورپه غاړه کیږي. نو چې داسې ده د ټرمپ د معما حل څه دی؟؟

خبره دا ده چې د معاصر سیاسي فرهنګ په قاموس کې د هر ولسواک او ناولسواک هیواد لپاره تر ټولو ستر ارزښت د هیواد ملي ګټې ساتل او د هغو د پیاوړتیا او پاللو په لاره کې اقدامات دي. د ملي ګټو د پاللو په لاره کې هیوادونه هر ډول اقداماتو ته جواز ورکوي او ترسره کوي یې. ملي ګټې کله د جنګ په توسط ښې پالل کیږي او کله هم د سولې او نورمال اړیکو په توسط. د غرب د معاصر سیاسي مفکر چرچیل خبره په دې برخه کې د کاڼي کرښه بلل کیږي چې وایي موږ نه همیشني دوستان لرو او نه همیشني دښمنان، بلکې یوازې همیشنۍ ملي ګټې لرو.

د روانې پیړۍ د لومړۍ لسیزې ځینو جریاناتو په نړیوالو سطحه د امریکا هغه اعتبار او حیثیت ته زیان ورساوه چې څو کاله پخوا یې درلود، د افغانستان په جنګ کې ناکامي او عراق کې تلفات او تیښته، دغه راز د چین او روسیې بیا راپورته کیدلو د امریکا یکه تاز نړیوال حیثیت زیانمن کړ. په نورو الفاظو اوس د نړۍ هیوادونه له امریکا دومره نه ویریږي لکه د شلمې پیړۍ په وروستۍ لسیزه کې چې ترې ویریدل. امریکا چې په افغانستان او عراق کې د جنګ او زورآزمایي تجربې یې هم ناکامې ختلې پوځي اقدامات او یرغلونه هم ورته ناچله انتخابونه ښکاري.

د دې لپاره چې امریکا لا هم نړۍ په خاص ډول کمزوري هیوادونه تر خپل پوځي رعب او ارهاب لاندې وساتي، د امریکا ستراتیژیک مغز پلان جوړ کړ چې د امریکا واک یو داسې تن ته په لاس ورکړي چې دنیا یې د عادي کس په حیث نه بلکې د لیوني په صفت وپیژني او پرته له مقاومته یې غوښتنو ته غاړه کیږدي.

عام عرف دا دی چې خلک له لیوني انسان څخه د رحم، تعاطف، تنزل او ښه تعامل هیله نلري. که لیونی انسان ټوپک په لاس کې ولري نو خلک یې پرته له څه ویلو هره غوښتنه مني، اما که ټوپک د عاقل انسان په لاس کې وي نو خلک بیا کوښښ کوي په خبره ځان ورسره پوه کړي او قناعت ورکړي.

له همدې امله خو امریکایي سټبلیشمنټ د ټرمپ لپاره د لیونتوب نقش انتخاب کړ، تر څو یي دغه زیرک او قوال انسان د سپینې ماڼۍ د واکمن په حیث ولوبوي. امریکایي رسنیو ټول کوښښ وکړ چې له ټاکل کیدو وړاندې نوموړی د لیوني په حیث دنیا ته معرفي کړي. رسنیوهمیشه د نوموړي د معقولو خبرو په ځای نامعقولو خبرو ته هوا ورکوله، ترڅو یې لیونتوب دخلګو په زړه کې ځای ونیسي. ټرمپ اوس هم د امریکا د ولسمشر په حیث خپل لیونتوب ته دوام ورکوي خو دغه لیونتوب یو مصنوعي لیونتوب دی، ټرمپ په حقیقت کې لیونی نه دی او نه دومره احمق چې داسې غیرمتعارف اظهارات او اقدامات وکړي، نوموړي د امریکا دنړیوالې ستراتیژۍ د تطبیق په سریال کې د لیوني رول ورکړل شوی دی.

دا چې ټرمپ لیونی نه دی، بلکې قصدا د لیوني چمونه کوي او دا هر څه د یوه دقیق امریکایي پلان له مخې کیږي یو ثبوت یې هغه افشاء شوی معلومات دي چې وایي د امریکا ۹۶ کلن ستراتیژیست او وتلی سیاسي مفکر هنری کیسنجر له ټرمپ سره همیشنۍ لیدنې لري او هغه ته د نړیوال سیاست دښه لوبولو په برخه کې لارښوونې کوي.

په اصل کې که تاریخ وګورو د امریکا ټول سیاست همداسې عیار شوی دی، د امریکا سیاست چې له جمهوریپال او دموکرات ګوندونو څخه تشکیل دی، دموکراتان یې سوله خوښې او پرانیستي سیاست پلی کوي، له جنګ او ترینګلتیا بده وړي اما جمهوریپال د بوش او ټرمپ په څیر د جنګ نغارې ډنګوي، په حقیقت کې په دغه سوړ او تود چلند، یا عاقلانه او احمقانه پالیسیو کې د امریکا ګټې ملحوظې وي او د امریکا د نړیوالو ګټو په مقصد دغسې پالیسۍ غوره کیږي.

وروستۍ خبره دا چې له ټرمپ سره باید د لیوني په شان چلند ونه شي او نه یې هم له ګواښونو او اپلتو ویره وشي، نوموړی د یوه ژور پلان له مخې دغه نقش لوبوي. نوموړی باید دامریکا د یوه نورمال جمهور رئیس په شان وپیژندل شي او له هماغې زاویې ورسره داسې تعامل وشي چې د لیونتوب له اکټونو یې اغیزمن نه وي.




عابد

دامریکا خو هسې هم سر په سوړه تللی و، خولکه چې ناټو یې هم د وارسا په سرنوشت اخته کړه او دافغانستان له لاسه یې اوس داحالت دی چې په میاشت کې څو ځله سرمشریزې غونډې رابولي، دلړم په ۱۸ مه په .....کې ددغه سازمان ددفاع وزیرانو غونډه رابلل شوې وه چې ترډېره یې دافغانستان په موضوع بحث درلود.

غونډې ته په افغانستان کې دناټو استازي ( کورنلیوس زیمرمن ) هغه ناولده اپلتې ووېشتې چې نړۍ ورته حیرانه شوه او ډېرو دنظر څښتنانو ددې صحنې په لېدو دناټو حالت په افغانستان کې دزړه سوي وړ وباله .

هغه وویل : " په افغانستان کې په داخلي اوخارجي ځواکونو دطالبانو له لوري توندې حملې په پوځي ډګرکې ددوی ماتې څرګندوي او طالبان اوس وارخطادي غواړي دجګړې په ډګرکې دپام وړ لاسته راوړنې ولري ..."

ناټو چې اوس په افغانستان کې له سرساموونکي حالت سره مخ ده ، هڅه کوي حقایق په بل ډول وښيي او لمر په دوو ګوتو پټ کړي، ددې په ځای چې خپله ماته په زغرده ومني دواقعیتونو په چپه تعبیر دخلکو په سترګو کې خاورې شیندي .

هیڅ سالم عقل او ويښ وجدان به دا ونه مني چې له ټولو مادي او پرمخ تللیو وسایلو سره سره دجګړې یو لوری بیا هم له پرلپسې زیانونو سره مخ شي ولې بیادې هم جګړه مقابل لوري بايللې وي .

دا ډول څرګندونې له دې پرته چې همدا یو حقیقت ښه روښانه کړي چې په ټوله مانا یې په افغانستان کې ماته خوړلې بله هیڅ لاسته راوړنه نه شي لرلای .

په دې وروستیوکې رښتیاهم طالبانو دهیواد په بېلابېلو برخوکې ډېرسخت توند او ځیونکي بریدونه وکړل او دولسوالیو په شمول یې ډېرې سیمې ترخپل کنترول لاندې راوستې، دغه رازیې امریکا اوناټو هم ترسختو بریدونو لاندې ونیول چې د مادي زیانونو په ګډون یې ډېرځاني تلفات ور واړول ، که څه هم ترډېره دوی ددغو تلفاتو په پټولو کې بریالي کیږي ولې کله کله بیا هم دېته مجبورشي چې په ځینو اعتراف وکړي ، ددغو هڅو ښه بېلګه یې په پروان ولایت کې دطالبانو له لوري دهغې الوتکې ویشتل دي چې امریکایي ځواکونه یې په بګرام کې ښکته کول غوښتل، خو الوتکه له کېناستو مخکې وویشتل شوه چې سپاره ټول امریکایي پوځیان پکې ووژل شول .

داچې دځاني تلفاتو درد سخت وي نوکه کله کله دتلفاتوپه معمول اعتراف خوله پټه کړي، بیا په دغه ډول اعتراف مجبور شي او دسرمشریزو غونډو په سطحه داسې څه ووايي چې له بوړنوونکي حالت سره مخ کېده پکې له ورایه ښکاره وي .



# د اسلامي هیوادو په سیاسي نظام کې مالي فساد له کله پیل شو؟

همدرد

داسلام د دوهم راشد خلیفه امیر المؤمنین عمربن الخطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د خلافت په دوره کې مسلمانانو فارس(ایران) فتح کړ او دکسرې پریمانه خزانې غنیمت شوې او مدینې منورې ته راوړل شوې...

تاریخي روایاتو په استناد امیر المؤمنین حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دکسرې څخه د غنیمت شویو مالونو په ډیرۍ کې د یونامعلوم څېز په مندلو پسې لاس واهه او په ډېره ناکرارتیا او اضطراب کې دغنیمت څېزونه کله یو خوا اوکله بلې خوا کول،دوه ورځې تیرې شوې بله ورځ تري د ناکرارتیا او اضطراب وجه وپوښتل شوه: نوموړي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ویل: رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هجرت سفر پر مهال سراقه بن مالک ته فرمایلي و : چې ته به پخپلو لاسو کې دکسرې دلاس کړه ( بنګړی) وینې؛ دکسرا ټولې خزانې راوړل شوې، د دوه ورځو نه د هغې مندلو پسې سرګردان یم اوپه لاس رانغله،نو ناکرار په دې یم چې دا خو ناشونې ده چې دالله تعالی درسول صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وړاندوینه دې نه وې پوره شوې...!

یوه ورځ تېره شوه سباته یو مسافر ته راغی او نیغ دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مجلس ته ورغی،هغه وکړ امیر المؤمنین! زه دکسری خلاف د جنګیدونکو مجاهدینوله ډلې‌څخه یم، په بیرته راتلو کې د څه عذر او مجبوریت په بناوروسته پاتې شوم او نن مدینې ته ورسیدم دا یې وویل بیا غوټې ته ورته یوڅېز هغه دامیر المؤمنین په مخکې کېښود ویلي : دادغنیمت مال دی، ما سره امانت په توګه پاتې وواو دادی تاته مې راوړو، عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هغه غوټه پرانیسته په کې دکسرى دلاس کړه ( بنګړی) وه، چې په لیدو یې دعمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له خولې دالله اکبر ناره ووته ، ژر یې سراقه بن مالک اوغوښت اوهغه نه یې و پوښتل : تاته درسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دهجرت کیسه په زړه ده؟ سراقه ویل: ښه مې په زړه ده، عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ویل: دنارینه لپاره دسرو زرو استعمال روا ندی ،زه درسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وړاندوینه پوره کوم او تاته دلږ څنډ لپاره دکسرى دلاس کړهاچوم؛ مجلس کې عبد الرحمان بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ناست و، عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دهغه مجاهد ددیانت او امانتدارۍ ستاینه وکړه ویلي:په کوم قوم کې چې ستا پشان دیانت لرونکي او د امانت ساتونکي څوانان شتون ولري هغه قوم ته هیڅ کله هم دښمن خطر نشي پیښولی عبد الرحمان بن عوف رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وویل: خبره په مجاهد کې نه؛ بلکې په امیر المؤمنین کې ده هر کله چې کوم قوم تا (عمر) پشان دیانت لرونکی او امانت ساتونکی واکمن ولري هغه ته بل قوم شکست نشي- ورکولی.

بخاري شریف کې د حذیفه بن الیمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ واقعه ده ، نوموړي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ به دحالاتو دتغیر او بدلون څخه په شکوه کې ویل: زموږ په وخت کې داحال و چې پرته له ډار او خطر مو له هر شخص سره راکړه ورکړه، بیع وشراء کوله او په موږ کې داباور و چې که داسړی مسلمان وي ایمان ورته زموږ سره دفریب اجازه نه ورکوي؛ یا په بل سپیناوي حضرت حذیفه بن الیمان رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایل: زموږ په وخت کې دایمان قوت او دنظام شفافیت په ټولنه کې دفریب او بد دیانتۍ په وړاندې خنډ و.

نن سباکه په اسلامي هېوادو او مسلمانانو نظر واچو، وینو هر سړی پر بل بې باوره دی، له کوچنیو معاملاتو واخله تر لویو او نړیوالو چارو په ټولو کې خپلمنځي باور ټکان خوړلی او اعتماد له منځه تلی، ددې قوي لاملونه دوه دي یو داچې دمسلمانانو ایمان دهغه دور دخلکو پشان قویندی دکوم دور چې حضرت حذیفه بن الیمان رَضِيَٱللَّهُعَنۡهُ یادونه کوله او دوهم دمسلمانانو سیاسي نظامونه شفاف پاتې نشول له کله نه چې دمسلمانانو دواک چارې د دین او اسلام څخه ناخبرو او جاهلو خلکو ته په لاسورغلې د هغه وخت نه په سیاسي ډګر کې دمسلمانانو نظام فاسد شوی دی او پکې هر ډول بې لار ی منځته راغلې، پخوانیو حکومتونو او نظامونو کې که څو هم واکمنو کې دعلم او عمل له پلوه ګڼو کمزورتیاوو شتون لاره، خو هلته دعلماوو موجودیت او په سیاسي نظامونو کې دهغوی ګډون دګڼو مفاسدو په وړاندې خنډ و، هغوی په اسانه چار واکو ته اجازه نه ورکوله چې هغوی په ښکاره داسلامي اصولو او اخلاقي مقرراتو نه سرغړونې وکړي دتیرې یوې پیړۍ راهیسې سائنسې پرمختیاوو نړۍ سره نیږدې کړه او په سیاسي چارو کې دعلماوو پر کردار محدودیتونه ولګیدل او چارواکي دعلماوو نه بې پروا او دخپلې تبې او ارادې څښتنان شول، واکمن زړور شول او ډول، ډول سرغړونې یې پیل کړې بیت المال او د مسلمانانو مالونه یې دخپلو شخصي- مالونو په څېر اوګرځول، دمسلمانانو حقوق یې غصب کړل او کرار کرار دبیت المال په بې ځایه مصرفولو دومره وړاندې لاړل چې نن سبا د بډای اسلامي هېوادو واکمنو دمصرفونو سره دامریکاپشان دسپر هېواد هېواد ولسمشر او چارواکې هم سیالې نشي کولی ...

# وېرووونکي حقایق

# ژباړه: محمد هاشم شاهین

په نړۍ کې تر ټولو ستر کاروبار د تېلو دی، کوم خلک چې تېل کنترول کوي هغوی د نړۍ پر اقتصاد (Economy)کنترول لري.

په نړۍ کې دوهم تر ټولو ستر بزنس د سلاح (Ammunitions)دی، اندازه ئې له دې لګولی شو چې د نړۍ د تر ټولو پیاوړي اقتصاد درلودونکي امریکا د عوایدو پنځوس سلنه برخه د سلاح د خرڅلاو له لارې ترلاسه کیږي (ځکه نو د دوی ګټه داده چې د نړۍ په مختلفو هېوادونو کې مسلسله جګړه جاري وي.(

خو ډېر کم خلک به خبر وي چې په نړۍ کې دریېم تر ټولو ستر کاروبار د نشه يي توکو (Drugs)دی، خلک ځکه خبر ندي چې دا کار په غیر قانوني شکل ترسره کیږي، او د هغوی اسناد (Documents)نه جوړیږي.

د امریکا استخباراتي سازمان سي آی اې (CIA)د نړۍ تر ټولو لویه جاسوسي شبکه ده، د دې شبکې عملیات په ټوله نړۍ کې جاري دي چې بې ساري مصارف ورباندې کیږي، دا مصارف تر هغې بودیجې څو ځله ډېر دي چې د هغې لپاره تصویب کیږي.

په یاد ولرئ چې "سي آی اې" د خپلو مصارفو ۹۰٪ سلنه برخه د نشه يي توکو د قاچاق له لارې پوره کوي.

په نړۍ کې دوې سیمې داسې دي چې هلته تر هر ځای ډېر نشه يي توکي پیدا کیږي، یوه سیمه چین ته نږدې د میانمار، تایلېنډ او... سیمه ده، چې طلائي مثلث (golden triangle)ورته ویل کیږي، یو وخت دا سیمه په نړۍ کې تر ټولو د ډېرو نشه يي توکو تولیدوونکې سیمه وه.

دوهمه سیمه چې نن سبا طلایي هلال (golden crescent)ورته ویل کیږي افغانستان ده چې دلته نو د نړۍ نږدې ۹۰٪فیصد تریاک او هیروئین(Heroin)تولیدیږي، دا نشه يي مواد ډېری په هغو سیمو کې تولیدیږي چې هلته د امریکایانو کنترول دی، او د امریکایي فوځ خلک په زغرده د داسې خبرو جسارت کوي چې "موږ د نشه يي توکو د کښت د خوندي کولو په موخه راغلي یو."

د طالبانو د اسلامي امارت په وخت مرحوم ملا محمد عمر مجاهد د ۲۰۰۰م کال د جولای په میاشت کې د نشه يي توکو کښت غیر قانوني وباله او ډېر شدید بندیزئې ورباندې وضع کړ، چې له امله ئې په ټوله نړۍ کې د لومړي ځل لپاره د تریاکو او هیروئینو ډېر شدید قلّت او کمښت پیدا شو.



# د ټرمپ، جنګي تګلارې

## تراوسه څه کړي دي....!؟

لیکوال: موسی‌فرهاد

د ټرمپ نوي تګلاره له اعلان سره هم مهاله، که له یوې خوا یې پراخه غندنه وشوه ، خو له بلې خوا یې تائیدوونکي هم درلودل ، د کابل د لاسپوڅي اداري چارواکو تر حد زیاته خوښي ورته وښودله، هغه یې تائید کړه ، د هرکلي په پار یې رسمي حکومتي غونډې ورته جوړې کړې، دوی دغه ستراتیژي داسې وګڼله چې ګویا نور د افغانستان معضله یکطرفه شوه ، طالبان به د امریکا د بمبارونو په پایله کې له منځه ولاړ شي ، پاکستان به د امریکا تر سیاسي قهر لاندې، په کلي ډول به منزوي شي، د چین ، ایران او روس رول به په افغانستان کې پیکه شي. د هند ملاتړ به افغانستان ته نجات ورکړي.

د ګډ سري حکومت دواړو مشرانو ادعا وکړه چې دا پالیسي اصلاً د دوی په غوښتنه جوړه شوې او د دوی ټول تجویزونه پکې ځای شوي دي. اجیرو رسنیو هم تر حد زیات تبلیغاتو ته زور ورکړ ترڅو د دې تګلارې د کامیابۍ لپاره کمپاین جاري وساتي.

په هرصورت اوس خبره دا ده چې آیا رښتیا هم د ټرمپ دغه اعلان شوې کړنلارې طالبان متاثره کړي؟ د هغوی مقاومت یې له شکست سره مخ کړی ؟

لکه څرنګه چې د سیمي او حالاتو بلد تحلیل ګران لا له وړاندې یعني د ټرمپ د تګلارې د اعلان پر مهال هم په دې فکر وو چې ښایي امریکایان په لومړي سر کې ړندو بمباریو ته زور ورکړي ، زیاته ولسي- مرګ ژوبله به ورسره وي ، لکه په دې وروستیو کې چې په ننګرهار، خوست، کندوز، لوګر ، شینډنډ او قرباغ کې په سلګونو تنه ولسي وګړي په شهادت ورسیدل.

دا کار به ظاهراً د ګوډاګیو ځواکونو لپاره دومره چانس برابر کړي چې د طالبانو له مسلسلو بریدونو به څه ناڅه خوندي شي ، طالبان به هر وخت او هرځای دا موقع پیدا نکړای شي چې د پخوا په څیر به د تهاجمي بریدونو په مټ په لسګونو دولتي ځواکونه ووژني او یا یې محاصره کړي ، پوستې ، قرارګاوې او ولسوالۍ تری ونیسي- مګر په مجموع کې دا کار د طالبانو د مخنیوي او یا د هغوی د نورو جنګي تکتیکونو د کمزوري کولو په لاره کې نه یوازې مرسته نشي کولای ؛ بلکې د بهرنیو یرغلګرو او د هغوی د تحت الحمایه لاسپوڅي حکومت پرضد به د ولس د کرکې او نفرت ګراف نور هم اوچت کړي.

لکه روسانو چې د خپل اشغال په وروستیو کې هم همدا لوبې ته لاس واچاوه په زرهاوو ړانده بمونه یې د خپل افغان ګوډاګي حکومت په ملاتړ پر ولسي سیمو وغورځول خو همدا یې



لامل شو چې بالاخره تیښتې ته مجبور شول.

بله خبره چې تحلیلګرانو کوله ؛ هغه دا وه چې امریکایان که هرڅومره بمبارونه زیات کړي او یا الوتکي ډېري کړي ؛ بیا هم دومره نشي کولای لکه له دوه زره نهم نه تر ۱۳م کال پوري چې امریکایانو حتی په لارو کوڅو کې د خلکو تلاشۍ هم په الوتکو اخیستلي چې ځای پرځای به یې په هوا کې کولاګګي ودرولي او د موټرسایکل سپرو تلاشي به یې پري اخیستله. (کولاګګي د عامو خلکو اصطلاح ده چې یوقسم وړې امریکایي الوتکي وي هم یې ډېر ټیټ پرواز کاوه، هم په هوا کې دریدلای شوای او هم یې د راکیټي برید په وړاندي مدافعوي ځواک درلود) ، بمبار ، ویشتنل او نور بریدونه خو یې بیخي زیات ورباندي کول، خو له دې سره سره بیا هم طالبانو تر بل هروخت امریکایانو ته په همغه وخت کې زیات تلفات واړول. او هغه وخت کې د دوی پوځونه د لکونو په تعداد کې وو ، ولي اوس چې ۳ یا ٤ زره کسان راځي او له هوا څخه پر کلیو او کورونو ړندي بمبارۍ کوي ؛ نو دا هیڅ ډول اغیز پر طالبانو نشي درلودلای ، بې له دې چې ملکي تلفات بې انتها زیات کړي.

نو که چیري اوس امریکا او یا افغان حکومت د دوی دغه ستراتیژي دومره کامیابه ګڼي چې ګویا طالبان به له منځه یوسي ؛ هسي خوب او خیال ښکاري ، له تبلیغاتو پرته بل هیڅ نتیجه نشي لرلای.

د تحلیلګرانو دغه ډول څیړني تراوسه بلکل حقیقت ثابتي شوي ، امریکایانو ترعمل پرمیډیایي تبلیغ ډېر ترکیز کړی ، دویم یې پر هوایي بمبارونو اتکاء کړي چې په سلهاوو ملکي تلفات یې رامنځ ته کړي او په دې باندي خپله امریکایانو او د ملګرو ملتونو ادارو اعترافي بیانونه ورکړي دي.

خو د طالبانو د مخنیوي په اړه یې نه یوازي پرمختګ نه دی کړی بلکې تربل هر وخت زیات تلفات کورنیو عسکرو ته اوښتي هغه داچې طالبانو هم د زیاتو تهاجمي عملیاتو پرځای ، پر نویو جګړیزو تکتیکونو لاس پوري کړی ، په دې وروستیو کې یې په پکتیا ، کندهار ، غزني ، کندوز ، هلمند ، فراه ، ارزګان او نورو سیمو کې کورنیو عسکرو ته بې شمیره هلاکتونه یې بیلګې دي.

ګټه یې چا ته ورسیده؟

۱ امریکایانو ته ، ۲ طالبانو ته ، ۳ کابل اداري ته ، ٤ او که سیمه ایزو هیوادونو ته ؟

- امریکایان، له شپاړس کلني جګړي ترپوزي راغلي، هغوی اوس فکر کا وه چې څنګه وکولای شي ترڅو له دې بې هدفه او پرمصرفه جګړې نه په باعزته طریقې سره ځان خلاص کړي.

هغوی اووه میاشتې پرډېرو آپشنونو غور وکړ ، بالاخره یې هغه لاره اختیار کړه چې خوښه یې نه وه ، یعني بیرته یې په یوازي سر یوې ناکامي او نامالومي جګړي ته ور ودانګل.

د ناټو ډیری ملګري یې ورسره همغږي نه دي، که څیني ورسره همغږي هم وي ، خو عملاً ورسره برخه نه اخلي.

له همدې نه سرې اټکل کولای شي چې دا تګلاره د امریکا نه د خوښي تګلاره ده ، نه یې د جګړې د ګټلو تضمین کوونکي ده او نه یې د سر او مال د زیان مخ نیوونکي ستراتیژي ده . خو دوی صرف او صرف د مجبوریت له وجي غوره کړې. نو طبعي خبره ده چې د استراتیژي دوی ته د ګټي پرځای؛ زیان اړوونکي ده.

۲- طالبانو ته په هرصورت د جګړې دوام د زغملو نه دی ، طالبان دا جګړه د یو ضرورت په وجه کوي، د دوی انتخاب جګړه نه ده، په ډېرو سختو شرایطو کې ، له سخت ځواکمن دښمن سره په مقاومت کې قرار لري. نو د هغوی لپاره د امریکا دغه اعلان چې خپل اشغال او جګړې ته به دوام ورکړي ؛ خورا ستونزمن خبر تمامیدای شي. مګر چونکه د طالبانو جګړه یوه مقدسه اسلامي صبغه لري ، د خپل وطن، خپل اسلامي نظام او خپلو خلکو د آزادۍ په لاره کې قرباني ورکول هغوی د ځان ویاړ ګڼي ، نو ځکه یې د پرېښودلو او ستړیا احساس هم نه کوي. خو په هرصورت د ټرمپ ستراتیژي چې د جګړې دوام دی ؛ طالبان یې د خپل ځان او خپل ولس په زیان بولي.

۳- سیمه ایز او ګاونډي هیوادونه خو طبعاً د امریکا د جګړې له دوام نه ویره محسوسوي او مخالفت ورسره ښیې ، په روانه ستراتیژي کې یې یو هم د ځان په ګټه کومه د خیر نکته نهویني.

٤ – د کابل لاسپوڅي اداره یوازنی اړخ دی چې د ټرمپ له ستراتیژۍ نه ښه ګټه محسوسوي، همدا وجه وه چې تر هرچا زیات هرکلی یې هم همدوی وکړو. ځکه دوی پوهیدل چې د امریکایی الوتکو له همکارۍ او د هغوی د ډالرو پرته دوی په افغان ولس کې هیڅ ډول ملي ریښه نلري. نو د مجاهدینو په وړاندي د یوه ساعت لپاره هم د مقاومت وړتیا نلري. که امریکا نه وي ؛ حتمي ده چې په لنډه موده کې به یې ټول سیټپ له منځه تللی وي. نو هم په پوځي او هم په لوژیستیکي لحاظ د دوی ژوند د امریکا د عسکرو له موجودیت سره تړلی دی.

همدا وجه ده چې دغه ډول آني او موقت مفادات، چې تنها د امریکایی عسکرو پاتي کیدل ، هوایي بمباریو ته زور ورکول او د ډالري مرستو لړۍ ژوندۍ ساتل ، که څه هم د کابل د زرګونو عسکرو او د ولسي خلکو د سر په قیمت تمامیږي ؛ د ګوډاګي حکومت چارواکي یې د ځان په ګټه بولي.



لنډه دا چې ...

تراوسه پوري د ټرمپ د ستراتیژۍ اغیزمنتیا یوازي دا ده چې په هیواد او سیمه کې یې فقط تشنج ، ګډوډي ، هلاکتونه ، بشري او مالي زیانونه، زیات کړي ، ولی د مثبت اغیز آثار یې په دوربین کې هم نه ښکاري. نه یې د طالبانو مقاومت متاثره کړی او نه د امریکایي اشغالګرو او د هغوی د ګوډاګیانو مؤثریت تقویه کولای شي. بلکې په نړیواله کچه د امریکا او د هیواد په سطحه د هغوی د ګوډاګیانو سیاسي او اخلاقي اعتبار ته یې په هرصورت دروند زیان ور اړولی دی.

پای ..................!

# واشنګټن ته

## د عبدالله د وروستي سفر په هکله

شاهد (غزنيوال)

د ګډ حکومت اجرائيه مشر ډاکټر عبدالله واشنګټن ته د خپل سفر په مهال د ټرمپ د خونړۍ ستراتيژۍ په مهال يو لړ نادرې ځرګندونې کړې.

نومـوړي له واشنګټن پوست او نورو امريکايي رسنيو سره د افغانستان لپاره د ټرمپ جنګي ستراتيژي يوه هر اړخيزه، بريالۍ او افغان ځغورونکې ستراتيژۍ بللې.

ډاکټرعبد الله د يادې ستراتيژۍ د برياليتوب لامل د هغې په وخت او زمان پورې نه محدوديت ښودلی .

نومـوړی د واشنګټن پوست ورځپاڼې د يوې پوښتنې په ځواب کې داسې وايي:

د افغانستان په اړه د ټرمپ ستراتيژي له ځو اړخونو بريالۍ ده:

((لومړی دا چې د هغې د تطبيق وخت په يوه محدود وخت او زمان پورې نه دی محدود ، بلکې تر څو چې د تروريزم خطر وي تر هغو به يې دا ستراتيژي په افغانستان کې مرعي الاجراء وي.

دوهم داچې دهمدې پوځي تګلارې په وسيله به مخالفين ( طالبان) ديته اړيستل کيږي چې د سولې خبرې ومني او له افغان دولت سره د مذاکراتو ميز ته کينول شي.))

پورتنۍ خبرې د ګډ حکومت د دوهم مرتبه لوړ پوړي شخص ځرګندونې دي چې د ټرمپ د هغې وحشي- ستراتيژي په اړه يې کړې کومه چې په يوه مياشت کې د سلګونو افغانانو د وژلو لامل شوه .

هغه ستراتيژي چې خپله امريکايان د هغې په ناکامي اعتراف کوي او هغه په افغانستان کې د جګړو او نا امنيو د تداوم تسلسل بولي.

هغه وحشيانه ستراتيژي چې د هغې د پلي کيدو لپاره په يوه مياشت کې تقريبا ۱۰۰۰ امريکايي بمونه د بيدفاع افغاانو په سرونو و اورول شول.

هغه ستراتيژي چې له امله يې هم د افغانانو د ښادي او د غم مناسبتونه بمبار کړل شول او په سلګونو بيوزله ولسي کسان ورکي ووژل شول.

هغه ستراتيژي چې هم ورکې مساجد په نښه شول، هم مدارس او هم روغتونونه.

هغه ستراتيژي چې له امله يې زرګونه کورنۍ تباه شولې، ماشومان يې يتيمان او تور سرې يې بې اسرې

افغانان به د دې حکومت په واکمنۍ کې وژل کیږي، تباه کیږي او بمبار کیږي د دې لپاره چې په واشنګټن کې د امریکایي دوستانو!!! امنیت خوندي وي.



خو د افغانانو دا عام وژنه به نه بشري جنایت بلل کیږي او نه هم د بشري حقونو ترپښولاندې کول ، بلکې د امریکایي لاسپوڅو او د هغوی د ترجمانانو په خوله به په افغانستان کې د امریکایانو ټول تر سره کیدونکي جنایات د افغان ژغورنې په نوم د نجات عملیات بلل کیږي او ...

هو همدا د امریکایي اشغال تر سیوري لاندې د امریکایي مزدور حکومت د بې ننګه چارواکو حیواني منطق دی چې غواړي افغان غیرتي ولس باندې اغفال کړي ...

خو هغوی باید پوه شي چې افغان ولس ستاسي او ستاسي د جنایتکاره بادارانو اصلي ماهیت پیژندلی ځکه یې د عزت او غیرت سنګرونو ته مخه کړې ...

هغوی ستاسي او ستاسي د بادارانو له جنایتونو څخه واقعي نجات د جهادي مقاومت په تداوم کېویني او په همدې هیله به خپل وروستي آرمان ته د رسیدو لپاره دوام ورکوي.

د امریکایي اشغالګرو او د هغوی د بې ننګه مزدورانو مخ دې تور وي.

شوې او هغه ستراتیژۍ چې په هغې کې امریکایي خورواریز بمونه د افغانانو په سرونو تجربه شول .

هغه ستراتیژي چې د ګډ رژیم پرلماني استازي ، د هغه د سنا مجلس غړي او د هغه ډیری غړي یې یوه خونړۍ او افغان ضد ستراتیژي بولي خو د ګډ حکومت اجرائیه مشر یې هر اړخیزه ، بریالۍ او افغان ژغورونکي ستراتیژي بولي او له ټرمپ څخه یې د هراړخیز تطبیق غوښتنه کوي .

هوکه ! دا د امریکایي ګډ حکومت د یوه لاسپوڅي او مخنث مزدور(عبدالله عبدالله ) په خوله د همدې پردي پاله حکومت د ماهیت تشریح کولو یو ژوندی تعبیر دی چې امریکایي رسنیو ته کیږي او د هغوی له لارې بیا د افغان غیرتي ولس مشاعر او احساسات وربانديې زخمي کیږي.

د امریکا د وخت خارجه وزیر د دغه مزدور حکومت د ایجاد بنسټ په کابل کې د امریکا سفارت په انګړ کې یواځې د دې لپاره وکړ چې هغه به فقط د امریکایي مصالحو مدافع وي.

# له امریکا سره د امنیتي تړون لغوه کیــدل

# د افغـــانانو د زړه غـــږ دی؟

جمیل میرني

بالاخره دهغه پارلمان له حنجرې هم لــه امریکــاسره دامنیتــي تــړون دلغــوه کیدلوغږونه راووتل چې څه باندې دری کاله وړاندې همدغـه پارلمان دنومـوړي نـاولي تـړون دتائیـدلپاره خپلـه مثبتـه رایه کارولي وه .

پـرون دکابـل رژیـم پـه پارلمـان کـې دهیواد دورستیو خونړیو پیښو دڅیړلو پـه موخه په جوړه شـوي غونډه کـې دپارلمان ګنـو وکیلانـو لـدې حقیقـت څخـه پـرده پورتـه کـړه چـې امنیتـي تـړون افغانـان دسیمه ییزرقابت لمبوتـه وروغورځـول پـه هغـه سربیــره امریکایــانو دافغانســتان یولړحساسي برخـي دداعـش تکفیـري ډلې دځای پرځای کیدلواوفعالیت لپاره اماده کړي ترڅو دافغانانو ترمنځ دمـذهبي نفـاق اودښمنی اورونه بل کړي

دپارلمـان ځینووکیلانـوداهم ووئیـل چـې نورهغـه وخـت رارسـیدلی چـې لـه امریکایــانو سره امنیتــي تــړون فســخه اودټرامپ نوي ستراتیژی ردکړل شي .

له شک پرته چې دامریکایانو امنیتي تړون او هم یې جنګي ستراتیژی دواړه هغه استعماري حربې وې اودې چې دافغانستان دتبــاهی اوبربــادی پــه نیــت امریکایانوجوړې او وکارولې، ترڅوپه خپلو شکستونو اوزیانونو پـرده واچـوي اودخپـل روان اشغال ډول اوشکل ته تغیوروکړي.

امریکایان چې کله په دې ټکـي پـوه شول چې دیونیم لکو پوځیانو په مټ یې دځـان پـه وړانـدې مقاومـت خاموشـه اوکمزوری نشو کـړای نـوې غوښـتل چـې دعـراق نسـخه دلتـه پـه افغانسـتان کـې استعمال اوتکرارکړي ځان تریـوه حـده لـه ځاني مرګ ژوبلي بـچ کـړي خپـل داخـلي مزدوران اوجاسوسان چې په افغانستان کې دملـي اردو، امنیتــي قوتونواواربکیانوپــه نامـــه یـــادیږي دځـــان لپـــاره ډال اوسپرجوړکړي

پـه هغه سربیره یـې دافغانـانو دملي وحدت دشیرازې دنړولوپـه موخـه داعـش اکـمال اوتجهیزکړترڅودافغانانوپـه دینـي معابــدو اومراســمو بانــدې خــونړۍ چاودنې اوبریدونه ترسره کـړي عـام ولـس تـه درنـه مـرګ ژوبلـه واړوي ، مالونـه اوشـــتمنی یـــې چـــورکړي اولـــه خپلوکورونواوجـونګړو یـې کـډه کولوتـه اړباسي ، چـې پـه دې وسیله دافغانانوپـه منـځ کـې دداعـش وحشـت اوبیـم پـراخ اوازهان دیتـه جـوړکړي چـې دداعـش پـه وړاندې له مزاحمت څخه لاس واخلي .

خودمتعال رب (جل جلاله ) په خاص معاونـت اونصـرت دافغانسـتان اسـلامي امارت پـه یووخـت کـې هـم دامریکایـانو ژامـي مـاتي ، هـم یـې دڅلـور لکـه ملـي جواسیســو او غلامــانو جنګــي دامونــه اوپلانونه شنډاوخنثی کـړل اوهـم دداعـش دپلیـدي فتنـې پـه وړانـدې لکـه فولادي غرودریـد پـه ټـول هیـوادکې یـې دداعـش دمحـوې لپـاره ګړنـدي اقـدامات وکـړل دننګرهـار لـه محدودوځوغرنیوسـیموپرته یـې نورټـول ولایتونـه لــه دغــو شریروحشراتوڅخه صفااوسـتره وګرځـول ، چـــې بـــالاخره دداعـــش مـــات اوګوډافرادمجبورشول لویوښاروتوته وتښتي اودکابل رژیم دملي امنیـت اوامریکایـانو په خاصومرکزونواوبیزونوکې پنـاه واخلي اوله همغوځایونوڅخه خپلوافغـان دښـمنه تحرکاتوته دوام ورکړي

اسـلامي امـارت دکابـل پارلمـان پـه وکیلانوغږکـــوي چـــې دامریکـــایی لښکرووجودپه افغانستان کې هم پـه دینـي اوهم په تاریخي لحـاظ سـتاسي پـه ټنـډه بانــدي یوتــورداغ دی ، ددې لپـاره چـې ځانونه موله تاریخي مواخذې ژغورلي وي نوپه لوړجرئت بائید دامنیتي تړون دلغـوه کیدلوپه خاطر محوري کرداراداکړی اوپـه قاطع تصمیم له باطل سره دمرستي نـاولي وثیقي ته دپای ټکی کیږدی .

،ځکـه امریکایـان دافغانانودنجـات اوسوکالي لپاره ندي راغلي له یوې نه بلـې ورځـي تـه دشرارت اوبـدبختیو ناورینونـه راوړي اوترهغـویې لـه افغانسـتان څخـه دتلواراده نشته چـې الله مکـړه دافغانسـتان دملـي وحـدت اډانـه یـې دخپلوتـالیځټو غلامانوپـه زریعـه نـه وي ختمـه کـړي ، نوبیـدار شـی دغفلـت اومادیاتوهوسـونه شـاته وغورځـوي اوصرف ددې لتـه پیـل کړي چې په څه ډول امریکایي طاغوت له افغانستان څخـه لـه بیـخ اوټولـوجرړوسره قلع اوقمـع کـړل شي.

# دنړۍ مشهور حکومتي سیستمونه کوم دي؟

سعید زرمتی

پر ځمکه باندې د انسان یو له سترو مسؤلیتونو څخه د عادلانه نظام یا خلافت جوړول دي. له عقلي نقطه نظره هم انسانان دې ته اړ دي چې د خپل اجتماعي ژوند د تنظیم، بهبود او خپلو اساسي حقوقو د ساتنې لپاره سیاسي مرجعیت او حاکمیت ولري. له همدې امله خو انسانانو پر ځمکه د ژوند له پیل سره سیاست او حکومتدارۍ ته هم مخه کړې، او ډول ډول حکومتي سیستمونه یې تجربه کړې دي.

په معاصر دور کې په بیلابیلو برخو کې د تحولاتو تر څنګ د حکومتدارۍ سیستمونه هم د پخوا په نسبت متنوع شوي او د واک چلولو نوې طریقې دود شوي دي. ښایي په نړۍ کې دوه داسې هیوادونه پیدا نه شي چې حکومتي جوړښت یې ترمنځ کټ مټ ورته والی ولري. هر ملت او دولت د خپلو شرایطو او ګټو په تناظر کې د ځان لپاره د حکومتدارۍ خپل سیستمونه غوره کړي چې ځینې یې خورا پیچلي او نادر هم دي.

خو که په نړیواله سطحه د حکومتدارۍ تر ټولو مشهور او متعارف سیستمونه مطالعه کړو نو په ټوله کې درې قسمه سیستمونه ډیر پیژندل شوي دي چې اکثره یې همدا اوس واک هم چلوي. د حکومت چلولو درې عمده نظریې له اسلامي، جمهوري او شاهي سیستمونو څخه عبارت دي چې دلته ورته په لنډو اشاره کوو.

## اسلامي حکومت

د اسلام له نظره د حکومتدارۍ منل شوی ډول د اسلامي امارت یا خلافت واکمني ده. سره له دې چې د اسلامي حاکمیت د اډانې د جوړښت په برخه کې دیني پوهانو ډیر بحثونه کړي او په ځینو خبرو کې سره متفق نه دي. خو د اکثرو دیني علماء کرامو له نظره د اسلامي حکومت عمده ارکان امیر یا زعیم، شورى، اجرائیه قوه، اداري ماشین، قضائیه قوه، والیان او پوځ دي.

د اسلامي حکومت مشر د تغلب، شورى او یا هم استخلاف په طریقه ټاکل کیږي. امیر د نظام په رأس کې قرار لري. شورى امیر ته مشورې ورکوي، قضائیه قوه چې د امیر په وکالت او ملاتړ شرعي فیصلې کوي د یوه مستقل ارګان په حیث له لوړ اعتبار څخه برخمن رکن بلل کیږي. اجرائیه قوه( وزیران یا حکومت) همدا شان والیان او پوځ مخامخ امیر ته مسؤل بلل کیږي او له امیر څخه هدایت اخلي.

متأسفانه په اوس وخت کې د ځمکې پر مخ کوم داسې برحال اسلامي حکومت نلرو چې په یوه هیواد دې بشپړ کنټرول ولري. په وروستیو لسیزو کې ددا ډول حکومت یوه بیلګه د افغانستان اسلامي امارت و، چې اولس کاله وړاندې ورباندې نړیوال یرغلګرو برید وکړ، د افغانستان د پلازمینې او ښارونو واک یې له لاسه ووت خو د افغانستان په اطرافي سیمو لا هم تسلط لري.

**جمهوري نظامونه:** د معاصر جهان هغه نظامونه چې جمهوري یا دموکراتیک بلل کیږي عمدتا په څلور قسمه ده.

## ۱ ــ ریاستي

ریاستي نظام هغه ته ویل کیږي چې د حکومت درې ګونې قواوې( مقننه، اجرائیه او قضائیه) له یو بل نه بشپړ استقلال او بارز تفکیک لري. په ریاستي نظام کې رئیس جمهور د خلکوپه مستقیمو رأیو ټاکل کیږي او له پیله د ریاست جمهوري په نوم عامې ټاکنې کیږي. په دا ډول نظام کې ولسمشر د هیواد او حکومت دواړو مشر بلل کیږي. پارلمان د رئیس جمهور د عزل واک نلري. په ریاستي نظام کې رئیس جمهور  چې تر څنګ د پادشاه یا لومړي وزیر تر عنوان لاندې بل کس نلري، د نورو نظامونو په پرتله له ډیر واک او صلاحیت څخه برخمن وي. په زیاتره ریاستي نظامونو کې د ولسمشر لخوا معرفي شوي وزیران باید د پارلمان د اعتماد رأیه له ځان سره ولري اما پارلمان حق نلري چې وزیران مخامخ نصب یا عزل کړي. په اوس وخت کې په افغانستان، امریکا، د جنوبي امریکا زیاتره هیوادونو، دغه راز د منځنۍ اسیا او افریقا په ډیرو هیوادونو کې ریاستي نظامونه حاکم دي.

## ۲ــ پارلماني

د دموکراتیکو نظامونو دوهم ډول پارلماني نظامونه دي.په پارلماني نظام کې د اجرائیه او مقننه قواوو تر منځ واضح بیلتون نه وي. اصلا اجرائیه قوه له پارلمان څخه مشروعیت او اعتبار اخلي. په پارلماني نظامونو کې د حکومت د مشرۍ لپاره مخامخ انتخابات نه کیږي. بلکې لومړی د پارلمان لپاره انتخابات کیږي. په پارلمان کې چې هر ګوند ډیرې څوکۍ وګټي، هغه له خپل منځ څخه یو کس د لومړي وزیر په حیث معرفي کوي او د اعتماد رأیه ورکوي.همدا راز کابینه یا وزیران هم د پارلمان له غړو ټاکل کیږي او پارلمان په اجرائیه قوه ژور اغیز او واک لري. که پارلمان وغواړي لومړی وزیر او د کابینې غړي په مخامخ ډول عزل کولای شي. په پارلماني نظامونو کې لومړی وزیر د حکومت مشر او رئیس جمهور د هیواد مشرـ بلل کیږي. په حکومتي چارو کې تقریبا ټول فعالیت د لومړي وزیر وي او رئیس جمهور یوازې تشریفاتي حیثیت لري چې د حکومتي قواوو تر منځ د منازعاتو د حل کوښښ کوي. د پارلماني نظام بیلګې لکه د پاکستان،هند، اسرائیل او یوشمیر نورو هیوادونو حکومتي سیستمونه دي.

## ۳ــ نیمه ریاستي

نیمه ریاستي چې ریاستي ــ پارلماني نظام هم ورته وایي، د نظام هغه ډول دی چې په ځینو برخو کې له ریاستي او په ځینو کې له پارلماني سره مشابهت لري.په دا ډول سیستم کې رئیس جمهور د عامو خلکو په مستقیمو رایو ټاکل کیږي خو پارلمان ته مسؤل وي. په دې نظام کې د رئیس جمهور نقش یوازې تشریفاتي نه وي بلکې د لومړي وزیر ترڅنګ په حکومت چلولو کې برابر فعالیت لري. له ریاستي نظام سره ددې سیستم ورته والی د رئیس جمهور به زیات واک درلودلو او د مستقیمو رأیو په توسط ټاکل کیدو کې دی او له پارلماني سره یې مشابهت دادی چې پارلمان په رئیس جمهور او اجرائیه قوه تر دې حده واک لري چې کولای شي حکومت منحل کړي.

زیاتره نیمه ریاستي نظامونه د رئیس جمهور ترڅنګ لومړی وزیر هم لري مګر په ځینو دا ډول نظامونو کې د لومړي وزیر پوست لغو شوی تر څو د حکومت د دوو مشرانو تر منځ د خپلمنځي  نزاع مخه ونیول شي. د نیمه ریاستي نظامونو بیلګې د روسیې، لبنان او فرانسې حکومتي سیستمونه دي.

## ۴ ــ یو ګوندي

یو ګوندي نظامونه له دموکراسۍ څخه د کمونیستي تعبیر میراث بلل کیږي. په دا ډول نظامونو کې د قانون له مخې یوازې یو ګوند او له هغه سره تړلي سیاسي اشخاص د حکومت کولو او کاندیدلو حق لري. مثلا په چین او کیوبا کې یوازې هغه کسان د انتخاباتو له لارې ولسمشرۍ ته نوماند کیدلای او ټاکل کیدای شي چې دکمونیست ګوند غړي وي. په سوریه کې د بعث ګوند غړیتوب د کاندید کیدو لپاره شرط بلل کیږي.په دا ډول نظامونو کې دموکراسي د عمومي تکثر په مفهوم نه بلکې د ګوند په داخل کې د کثرت ګرایي په معنی ده.په دا ډول نظامونو کې یوازې څیرې بدلیږي رابدلیږي نور د حکومت عمومي پالیسۍ د ګوند دمنهج په رڼا کې په خپل حال پاته وي.

د ایران حکومت که څه هم د نړۍ په سطحه د حکومتدارۍ یوه تر ټولو پیچلې او نادره بیلګه ده خو د نورو سیستمونو په نسبت له یو ګونډي سیستم سره ډیر مشابهت لري. ځکه په ایران کې یوازې هغه څوک ولسمشرۍ ته د کاندیدلو حق لري چې د ولایت فقیه او خمیني د سیاسي نړۍ لید له نظریې سره موافق وي. له دې پرته هر کاندید د شورای نګهبان لخوا رد کیږي. خو په ایراني نظام له لویه سره د ولسواکۍ اطلاق ځکه بې ځایه دی چې د ټولو قواوو په رأس کې د رهبر په نوم د مطلقو اختیاراتو څښتن قرار لري.

## شاهي نظامونه

شاهي نظامونه د حکومتدارۍ یوه ډیره پخوانۍ بیلګه ده چې په اسلامي نړۍ یې هم ډیر وخت واک چلولی،په شاهي نظام کې پاچا د ملک، حکومت او ټولو اجراأتو ته واکدار بلل کیږي. اکثره شاهي نظامونه اساسي قانون نلري، ځکه پاچا نه غواړي په کوم قانون تړلی وي.

شاهي نظامونه په دوه قسمه دي. مطلقه شاهي او مشروطه شاهي

## مطلقه شاهي

پخواني شاهي نظامونه ټول د مطلقه شاهي سیستم درلودونکي وي. یعني پاچا مطلق اختیارات درلودل، د ټولو قواوو واک او اختیار به له پاچا سره و.په دا ډول نظامونو کې پارلمان وجود نه لري او هیڅ داسې بنسټ نشته چې پاچا د کوم کار په کولو یا نه کولو مأمور او ملزم کړي.

ددې نظامونو اوسنۍ بیلګې د سعودي عربستان، عمان او ځینو خلیجي هیوادونو نظامونه دي. چې پاچاهان یې مطلق اختیارات لري. په افغانستان کې له ۱۳۴۲ هـ ش کال وړاندې د افغانستان ټول نظامونه مطلق شاهي و.

## مشروطه شاهي

په اروپا کې د رنسانس د دورې له پیل سره دې فکر هم زور واخیست چې د پاچاهانو مطلق اختیارات باید تر ممکنه حده مشروط شي. یعني د ځینو چارو واک باید له پاچا پرته نور خلک په غاړه واخلي. په دې ډول په اروپایي هیوادونو کې د پاچا تر څنګ د پارلمان او لومړي وزیر منصبونه رامنځته شول. پاچا د ملي وحدت د سمبول او د هیواد د لومړي شخص په حیث په خپل تشریفاتي منصب قانع کړای شو او د حکومتي چارو یا اجرائیه قوې واک ترې لومړي وزیر ته انتقال شو.

دپاچا د مطلقو اختیاراتو د کمولو یاپه اصطلاح مشروطولو حرکت چې وروسته د مشروطیت غورځنګ ونومول شو په نولسمه میلادي پیړۍ کې په اوج کې و چې په پایله کې ګڼې مطلقه شاهۍ په مشروطه شاهي نظامونو بدلې شوې.

په افغانستان کې هم د شلمې پیړۍ له پیل سره سم د امیر حبیب الله خان په وخت کې د مشروطیت غورځنګ پیل شو، چې د حکومت له سخت عکس العمل سره مخامخ او زیاتره مشران یې اعدام شول. د شلمې پیړۍ په نیمایي کې چې په نړیواله سطحه د دموکراسۍ او دخلکو د رایې دحق انګازې په زور کې وې، د افغانستان پادشاه محمد ظاهر شاه ددې لپاره چې تر یوه حده په حکومت کې د خلکود ګډون تلوسه خړوبه کړي خپل مطلق شاهي نظام یې په مشروطه شاهۍ بدل کړ. چې په پایله کې یې د افغانستان لومړنی اساسي قانون جوړ شو، پارلمان رامنځته شو او د حکومتي چارو واک د پارلمان لخوا ټاکل کیدونکي صدراعظم ته وسپارل شو.

مشروطه شاهي سیستم اوس هم په نړۍ کې دود دی، برتانیا، جاپان، ناروې، هالنډ او ګڼ نور هیوادونه همدا نظام لري خو د وخت په تیریدو سره په دا ډول نظامونو کې د پادشاه واک او نقش نور هم کمرنګه شوی او اوس صرف د یوه تاریخي نماد حیثیت ورپاتې دی. په زیاتره مشروطه شاهي نظامونو کې اصلي واک له پارلمان سره وي چې لومړی وزیر او حکومت تعینوي او په ټولو چارو یې کنترول لري.



# دافغانستان په تاریخ کې

## د شرموونکي پریکړې تکل

لیک: واحد گل هاشم

په افغانستان کې دوه مقننه مجلسونه ( ولسي جرگه او مشرانو جرگه) د قانون جوړونې تر ټولو لوړ ارگانونه دي چې د ولس د ارادو څرگندوونکي او دغه شان د ټول ملت استازي بلل کیږي

پارلمان...

په یوه هیواد کې د پارلمان د نورو مسولیتونوسره دا مسولیت هم دی چې دوي د خپلې سیمې د ثبات، پرمختگ، ملي هویت، عقیدی څخه د ساتنې تر څنگ د پرمختللي هیواد په رامنځته کیدو کې هلې ځلې وکړي.

خوشبختانه دلته وکیلان د داسې هیواد استازي بلل کیږي چې نوموړی ۵۰۰۰ کلن تاریخ لري او په دغه تاریخ کې په غټو تورو لیکل شوي چې دې میړني ولس په هر حالت کې له خپل دین، هویت او کلتور څخه ساتنه کړې لویې لویې امپراتورۍ یې جوړې کړې دي، او دې ولس تل په خپل هویت افتخار کړی دی، حتا د نورو مذاهبو تر څنگ افغاني سیکان او هندوان هم په دې ویاړي چې دوي افغانان دي.

د افغانستان تاریخ دا ثابته کړې چې هر وخت چې کوم دښمن په افغانستان یرغل راوړی، دی میړني ولس یې په وړاندې مبارزه کړې ده او په دغه شان مسایلو کې پښتون، هزاره، ایماق، نورستاني، او په دې هیواد کې میشت هر قوم او هر وگړي د اسلام او د افغانیت څخه په گډه کلکه دفاع کړې ده.

که مونږ پخواني تاریخ ته ځیر شو دا ټولو ته ښکاره ده چې څومره د افغانستان تاریخ شاته کتل کیږي همغومره تعلیمي کچه هم پکې کمیږي ځکه هلته دومره اسنتیاوې نه وې موجودې کومې چې په اوسنۍ زمانه کې موجود دي خو بیا هم هاغه میړني ولس له خپله نوم او دین څخه په کلکه دفاع کړې او ددغه نومونو ددې په ځای چې خپله یې ورته درناوی کړی تر نورو سیمو یې هم رسولي دي.

خو اوس د یوشتمې پیړۍ عصري نړۍ شاهد افغانان چې د قانون جوړونې په څیر درانده مسولیتونه ورله غاړې دي او د ملت استازي بلل کیږي په ډیرې بې شرمۍ له خپله افغانیت او دین څخه لرې تښتي او د خپل ځان د پیژندنې په سند کې دا نه غواړي چې دی، او دا نور ټول ولس دې افغانان او مسلمان وبلل شي.

خورا زیات د شرم ځای دی، ډیر غټ عیب دی په نړیواله سطحه د زمونږ لپاره شرم دی چې مونږ په خپله له خپل هویت او عقیدی لرې تښتو، دغسې پریکړه ددې خلکو په بې علمی، بې سوادی، بې عقلتوب دلالت کوي ځکه که دلته له یوه کوچني هم پوښتنه وشي چې څوک یې او په کوم دین یې؟

نو درته به وواييي چې افغان يم او مسلمان يم خو زمونږ قانون جوړونكي او ملت استازي ددې نومونو څخه لرې تښتي اوددې مخالفت كوي چې په پيژندپانه كې دی د افغان او دين د نوم يادونه وشي.

د لړم د مياشتې په اتمه چې كله په ولسي جرګه كې د ولسمشر غني د تېر لمريز كال د كب په ۱۴مه د يو تقنيني فرمان په اړه بحث كيده، چې له مخې به يې د نفوسو د احوالو د ثبت په قانون كې د مليت، قوم او دين كلمې ځاى پر ځاى شي د ولسي جرګې له‌خوا د ۱۲۷ حاضرو وكيلانو ۸۳ مخالفو رايو په وركړې رد اعلان شو.

د پارلمان له دندو دا هم شميرل كيږي چې دوي بايد د خپل دين او هيواد څخه د ساتنې په موخه هلې ځلې وكړي، هيوا ته پرمختګ وركړي مګر بد بختانه مونږ داسې ډير كم استازي لرو چې په رښتونې مانا ورسره ددې ځوريدلي ولس غم ووسي.

په دې خبره دې ټول هغه وكيلان خبر ووسي چې دوي هيڅكله هم له چا څخه دين، او هويت نه شي اخستلای مګر دا ددوي په بې علمی او خپلې خاورې ته په سپكاوې دلالت كوي.



ابن مبارک احمدزی

# زه به يا شهيد يم يا به ژوندی وم، خو د كابل دفتحې مباركي سر له اوسه دركوم.

زه د دغه مزدور نظام د سقوط علامې او نښې د سر په سترګو وينم،د دقيقو راپورونو په اساس د امريكا خارجه وزير بګرام كې ويلي چې د افغانستان نفت او تېل به څنګه شي؟ ع او غ سم ځواب نه دی وركړی،د بګرام څخه په تېرو څو مياشتو كې سلګونه ترجمانان وشړل شول،د امريكا سفارت چې د ګرين كارټ يا په دغه سفارت كې د استخدام كومه پروسه پيل كړې وه هغه هم په ټپه ودريده.

هر دموكراتيک نظام په ۴ ستنو او قوتونو ولاړ دی چې هغه مقننه،قضائيه،اجرائيه او مطبوعاتي قوتونه دي،د كابل په اداره كې دغه ستنې د ثبات او تعادل له حالته انحراف ته مايل ښكاري،په مقننه قوه كې انډوخر روان دی،قضائيه قوه كې رشوت دی او فساد دی،اجرائيه كې مظلوم محكوم دی او ظالم حاكم،رسنيزه قوه كې هم فحشا او ډمتوب،زهرجن تبليغات ډېر شوي چې ملت ټول ترې كركه كا.

هر عاقل،بالغ،هوښيار او عادل سړی چې د كابل اوسنۍ اداري ته نظر وكا،د نظام د سقوط علامې به ښكاره ووينې.

كه يې نه منئ يوه اونۍ د نظام ماهيت او په نظام كې شته لوازم د بې طرفۍ په سترګو مطالعه كړئ بس.

دا نظام به نسكوريږي او پرځای به يې سپين سوچه اسلامي نظام راځي.

دا نه مبالغه ده،نه لاپې شاپې دي،نه احساسات دي،نه خيال پلو دی او نه د پاكستان او هندوستان د پروژو تعميل.

زمونږ سرحد او حدود زمونږ عقيده ده،مونږ به د ځينو ملحوظاتو په پار څه نا څه وايو خو حقيقت دا دی چې مونږ په تورخم،حيرتان،سپين بولدک،تورغندي او ډيورند پورې بند او واز نه يو،زمونږ دعوه د ټول امت ده،نو بنا بايد د ټول امت غم راسره وي.

دا خبره شايد ځينو ته د خندا او استهزا وړ وي خو زمونږ تاريخ ثابته كړې چې الله پاک خپلو مؤمنو بنده ګانو ته محال كې امكان ته زمينه برابره كړې ده.

د نظام سقوط د سر په سترګو وينم،كه د سترڅښتن خوښه وه په منځ مهال كې به يو ځل بيا نړۍ ته د اسلامي نظام يوه غوره نمونه تمثيل كاندو ان شاء الله.



# مخ رالوخ کړه

## جعلي منصوريې که اصلي!

پنځه کاله مخکې شاید په دې وخت کې به ملا محمد عمر (مجاهد) (رحمه الله) ژوندی وو چې د طالبانو اوسني شهید شوي مشر- ملا اختر منصور د نائب په صفت کار کاوه، که څه هم ما کومه رسمي دنده نه درلوده، خو له یوه ډیر نږدې ملګري سره هغه مجلس ته ولاړم کوم چې د ملا اختر منصور لخوا رابلل شوی وو.

په دغه مجلس کې چې شاو خوا تر پنځه ویشتو کسانو پورې ملګرو ګډون درلود، ټول یې نظامي جګپوړي مشران او د لوړو دندو مسئولین وو.

مونږ ټول په یوه لوی اطاق کې منصور صاحب ته په انتظار وو، له افغاني دود سره شینې چای مو غوړپولې او د ناستو کسانو لخوا عجیب او غریب واقعات ذکر کیدل، شیبه وروسته د اطاق په دروازه کې کوربه غږ کړ چې منصور صاحب راغی، په اطاق کې ټول موجود کسان په ډیر احترام او آدب ودریدل او د اطاق په دروازه یې سترګې ورخښې کړې.

منصور صاحب په داسې حالت کې رانووت چې مخ یې په یوه خړ رنګي دسمال پټ کړی وو، دا د ګرمي موسم وو، شاید د ګرمي له امله یا د خپل امنیت په خاطر به یې ځان پټ کړی وو، له رانوتو سره سم یې نبوي سنت (السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته) پر ځای کړل، او له ټولو سره یې په غیږ سترې مشې شروع کړه.

د سترې مشې په وخت کې یوه ملګري پرې ږغ کړ : مخ رالوخ کړه جعلي منصور یې که اصلي (تاسو ته به په یاد وي چې د منصور صاحب په نام یوه کس چې ویل کیدل په کوئټه کې یو دکاندار وو د کابل له اداري سره ښه پخه غولوونکې او شرموونکې معامله کړې وه).

دغه کس چې په منصور صاحب یې ورته ږغ وکړ ماته د منصور صاحب ډیر نږدې ملګری ښکاره شو، او په دې هم وپوهیدم چې منصور صاحب له خپلو ملګرو سره ټوقې او مزاحیه خبرې هم کوي، د همدغه ملګري په خبره ټول له خندا شنه شول، دا چې منصور صاحب په سترې مشې مصروف وو کیدای شي چې خندلي به یې وي خو ما یې خندا وا نه آوریده.

له سترې مشې چې فارغ شو د اطاق پورتني دیوال ته د څلورو ملګرو په مینځ کې کیناست، له کیناستو وروسته بیا یې له ټولو ملګرو سره له افغاني دود سره سم ښه جوړ فخیر وکړل، بیا یې سورت نصر تلاوت کړ او ښه اوږده دعا یې وکړه، په ځانګړي ډول د هغو کسانو په حق کې یې د بخښنې عجیبه الفاظ وویل کوم چې له همدغو نظامي ملګرو سره د جګړو په ترځ کې شهیدا ن شوي وو.

وروسته یې یو ګلاس اوبه وغوښتې، د اوبو له غړپولو وروسته یې په سر پروت دسمال لیرې کړ او په هغه ملګري یې ږغ وکړ چې ورته وې ویل (مخ رالوخ کړه جعلي منصور یې که اصلي) مولوي صاحب څنګه یې، په کور کې دې خیر ده، ملګري مو ښه دي، په دې وخت کې په خپله منصور صاحب او نورو

ټولو ملګرو عجيبه له مينې او محبت ډکه خندا وکړه.

وروسته منصور صاحب خپلې خبرې پيل کړې، د خبرو په پيل کې يې وويل : د الله تعالی جل جلاله ډير شکر پکار ده، شپه او ورځ الله تعالی ته متوجه کيدل پکار دي، چې له مونږ سره يې ډير نصرت کړی، او مونږ ته يې ډيره لويه کاميابي راکړې :

مونږ او تاسو هره ورځ وينو چې ملګري پوستې فتحه کوي، لوی لوی بيسونه فتحه کوي، ولسوالۍ فتحه کوي، دا د الله تعالی جل جلاله نصرت دی، دا د الله تعالی جل جلاله خصوصي پيرزوينه ده، دا د الله تعالی جل جلاله هغه ډول مرسته ده لکه په بدر او نورو ځايونو کې يې چې له خپلو مخلصو بندګانو صحابه کرامو رضی الله عنهم سره کړې وه، شکر پکار ده، الله ته متوجه کيدل پکار دي، عجز او زاري پکار دي، شپه او ورځ الله تعالی جل جلاله ته ژړا پکار ده چې نوره مرسته هم راوليږي، نوره هم راوليږي.

خو په دې باره کې هدايت دا ده چې کله هم ملګري پوسته، بيس، د ولسوالۍ مرکز يا د دښمن بل مرکز فتحه کړي نو په ډله ييز ډول دې ملګري همغه ځای ته نه ورځي، هلته دې نه پکې اوسيږي، هلته دې نه پکې ايساريږي، ځکه که له يوې خوا د هوائي ځواک خطر دی، له بلې خوا دا خطر هم شته چې مکار دښمن دې په خپل مرکز کې بمونه ځای پر ځای کړي وي او د ملګرو د داخليدو په وخت کې دې انفجار ورکړي، لهذا په هيڅ صورت کې اجازه نشته چې ملګري بې پروايي وکړي.

دويمه خبره دا ده چې مونږ او تاسو ته چې هر وخت د دښمن له لوري ضربه رسيدلې، وروسته چې معلومات شوي بيا معلومه شوې چې ملګرو بې غوري کړې وه، بې پروايي يې کړې وه، پهره يې نه وه درولې، ګوری ملګرو پهره کول نه يوازې دا چې ضروري ده، بلکې لکه څرنګه چې تاسو ته معلومه ده پهره کول ډير اجرونه او ثوابونه هم لري، لهذا هدايت دا ده چې له دې وروسته ټول مجبور او مکلف يو چې شه بيداره پهره (چوکيداري) به کوو، ترڅو خدای مکړه د لږ بيغوري له وجهې ملګرو ته زيان ونه رسيږي.

بله خبره دا ده چې له عام ولس سره ډيره ګزاره کوئ، د سپين ږيرو ډير قدر او احترام کوئ، له ځوانانو سره يې په معمولي او وړه خبره جنجال مکوئ، ځکه چې دا مجاهد ولس دی، دا قهرمان ولس دی، دا هغه ولس دی چې تاسو ته ډوډۍ درکوي، تاسو ته شپه او ځای درکوي، له تاسو سره همکاري کوي.

مونږ او تاسو خو بل ځوک نلرو، دا د همدغه ولس بچيان دي چې جهاد کوي، مونږ او تاسو هم د همدغه ولس بچيان يو، بل د جهاد تګلاره همدوی راته پرې ايښې ده، که دوی له روسانو سره جهاد نه وای کړی، خدای خبر چې نن ورځ به د افغانانو څه حال وو، همدا دوی وو چې روسان يې مات کړل او وطن يې راته آزاد کړ.

عام ولس ته د پاملرنې په باره کې هدايت دا ده چې بې موجبه له عام ولس سره کار مه لرئ، تکليف مه ورته رسوئ، او که له هر چا څخه په دې باره کې شکايت راشي پوښتنه به ترې کيږي، که چيرته خدای مکړه د يو چا لخوا بې موجبه او ناحقه ولسي کس ووژل شي او مونږ ته د مقتول کورنۍ عارضه شي نو مونږ به هغې ته اختيار ورکړو چې قاتل قصاص کوي، که ديت ترې اخلي او که يې بخښي، مونږ او تاسو ټول په دې مجبور او مکلف يو چې خپل مربوط ملګري په دې خبر کړو.

بيا يې ټولو ملګرو ته د خبرو کولو وخت ورکړ، د ماسپښين له لمانځه وروسته ډوډۍ وخوړل شوه، د ډوډۍ په سر يې د هيواد د يو شمير سپين ږيرو علماء کرامو پوښتنه وکړه، چې فلانی وفات شوی که ژوندی دی، ديته وايي مشر، ديته وايي رهبر، ديته وايي امير.

دا زما په خپل ژوند کې هغه خاطره ده چې هيڅکله به مې هيره نشي

پای



# دخوراک اوڅښاک اداب

لیکوال : مفتی محمدګل سعید

خــوراک دانســـان دژونــدګي لــه ضروریاتوڅخه دی ،لکه څرنګـه چـې داسلام په مقدس دیـن کـې دژونـدګی دهراړخ اصول،اداب اوطریقه ښـودل شـوې ده،دارنګـه دخـوراک اوڅښـاک آداب هـم ښـودل شـوي دي،چـې پـه لاندې ډول دي:

(۱)ــــ بایـدچې خـوراک پـه ګډه اوپـه اجتماعي توګه وشي داسې نه چې هریوکس ځانته اوجداخوراک ته ناست وي ،پـه ګډوخوړلوسره مینه ،محبـت اوبرکـت پیـداکیږي. نبـی کـریم صلی الله علیـه وسـلم فرمـایلي دي:کلواجمیعاًولاتفرقوافان البرکة مع الجماعة.یعنې یوځای خوراک وکـړی اوجداجدامه کیږی، پـه بـل حـدیث شریـف کـې فرمـایي: خیرالطعـام مـاکثرت علیـه الأ یـدي .بهـترین خـوراک هغـه ده چـې لاسـونه پـرې زیـات وي.همدارنګـه فرمایي:الاکـل مـع الاخـوان شـفاء. یعنـې لــه خپلومسلمانانوورونوسره پـه یوځـای خوراک کولوکې شفاء وي.

(۲)ـــ دخـوراک لـه آدابوڅخـه یـوداده چـې دخـوراک شروع بایـد مشرانسان وکړي، نبی کریم صلـی الله علیه وسلم فرمایی: ابدؤابالاکابر.یعنې په مشرانوشروع وکړی.

(۳)ـــ دخوراک ترشروع دمخه اوهمدارازترخوراک وروسته ددواړولاسونوپریمینځل ترمړوندونوپورې سنت دي. ملاعلي قاري رحمه الله په مرقـاة (ج ۱ص ۳۳۷) کـې لیکـي : چې هذامستحب .علامه ابن عابدین رحمه الله ورته سنت ویلي دي اودامت عمل هم پـه دې بانـدې جـاري دی. اصـل تحقیـق دادی چـې دخـوراک نـه مخکـې لاسـونه وینځـل مطلقامستحب دي ،دعلامه ابن عابدین په عبارت کې دسنت نـه مرادسـنت شرعیـه نـه دی بلکه مرادسنت عادیه دی چې هغه دمسـتحب پـه درجـه کـې دي. دلاسـونودوینځلوله ادابوڅخـه دادي:کـه چیرتـه دافغانانوپـه څېردچیلمچـي نظـام موجـودوي ، نـوترډوډۍ خوړلودمخـه دې دکـم عمـره دلاس پرمینځلوپېـل وشي، ځکـه دکـم عمـره شـوق اواشـتهاء ډوډۍتـه ترمشرانوزیاته وي ، خودخـوراک پـه پـای کـې دلاسـونووینځل بایدلـه سـپین ږیرواودزیات عمرخاوندانوڅخه شروع شي ، په حدیث شریف کې راغلي دي: لـیس منـا من لم یوقرکبیرنا،دلته توقیراوعزت همدغه دی چې ترنوروړانـدې لاسـونه ورپریمنځـل شي.له یادونې دې پاتې نه وي چې امام بخـاري رحمـه الله اوځینـې نورائمـه وایـي : کـه چیـرې څـوک یـولاس ووینځـي ، یادلاسـونوفقط ګـوتې ووینځـي نوپـه دې سره دلاسونووینځلوسـنت نـه اداکیـږي ، ترڅـویی چـې دواړه لاسـونه ترمړونـدوپورې نـه وي وینځلي . کله یی چې دډوډۍ خوړلوپاره لاسونه پریمنځل نوپه لاس پاک وغیره سره به یی نه وچوي ترڅودوینځلواثردخوراک پروخـت بـاقي پـاتې وي، خودخـوراک وروسـته چـې لاسونه ووینځي بیایی بایدپه لاس پاک وغیره سره وچ کړي ، ترڅودطعام اثربالکلیة زایل شي ،چې په دې سره به دموذي حشراتوله ضرراوچیچلوڅخه هم وژغـورل شي. بایدیادونـه وکړوچې دطعام اثربالکلیة ختمیدواودپوره نظافت راتلوپه موخه دصـابون اسـتعمال ښـه کاردی،لکه په خوابه ددې پرځای داشنان( زمی) اسـتعمال کیـده. دخـوراک لپـاره دخـولې مضمضه کول مستحب دي ، په عالمګیري کـې دي: والمسـتحب تطهیـرالفم فـی جمیـع المواضع .مطلب داچې دخوراک لپاره دلاسونوپه څېر دخولې پریمنځـل سـنت نـه ، بلکـه مستحب دي .دجنب لپاره کـه نـروي یـا ښـځه ترلاسـونواوخولې وینځلووړانـدې خـوراک اوڅښاک کول مکروه دي، خوحائضـه ښـځه لـه دې حکـم نـه مسـتثنی ده. (۴)ـــ دډوډۍ خوړلویاداوبوڅښلوپه شروع کې بسم الله ویل اوپه پای کـې الحمـدلله ویـل سـنت دي ،

دادعاگانې هم رانقل شویدي : الحمدلله الذی اطعمناوسقانا وجعلنامن المسلمین . الحمدلله الذی اطعمناهذاالطعام من غیرحول منی ولاقوة برحمتک یاارحم الراحمین .

له حضرت انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دی هغه وایی:حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:الله تعالی له هغه بنده ډیرراضی کیږي چې خوراک اوڅښاک وکړي بیایی په پای کې حمداداکړي ،یعنې اقلاً (الحمدلله)وویل شي هم کافی ده.

حجة الاسلام امام غزالی رحمه الله وایی :اوله لقمه کې دې بسم الله دوهمه کې دې بسم الله الرحمن ،په دریمه کې دې بسم الله الرحمن الرحیم ووایی .یعنې په هره گوله کې دې یوحرف زیاتوي نوکه اولنۍ لقمه کې بسم الله وویل شي دټول طعام لپاره کافي ده.له حضرت ابوامامه رضی الله عنه نه روایت دی وایي:چې کله به له حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم څخه دسترخان پورته شونوبه وویل :الحمدلله حمداکثیراطیبامبارکافیه غیرمودع ولامستغنی عنه ربنا.که چیرې په اول کې ترینه بسم الله هیره شوه نودیادیدلوسره سم دې ووایي: بسم الله من اوله واخره.له حضرت عایشې رضی الله عنهاڅخه روایت دی چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي:اذاأکل أحدکم فنسی أن یذکراسم الله علی طعامه فلیقل بسم الله أوله وآخره.لیکن بسم الله به په اوچت اوازسره وایی ترڅوچې نورناست خلک یی هم ورسره ووایي ، خوپه دې شرط چې داروزي حلاله وي،که چیرې داموجوده خوراک حلال نه وه بیابه بسم الله نه وایی ، خوالحمدلله په هرحال کې ویلی شي . مناسب داده چې الحمدلله په اوچت اوازسره بایدترهغه پورې ونه ویلی شي ترڅوچې ټول له خوراک څخه فارغ شوي نه وي .

(۵)ـــ دخوراک په لومړۍ سرکې بایدشروع په مالگه سره وشي ، اوهم باید په پای کې مالگه وڅکي،حدیث شریف کې دي:علیکم بالملح فانه شفاء من سبعین داء منه الجنون والجذام والبرص . یعنې په مالگه کې داویامرضونوشفاء ده .دمالگې استعمال له خوراک نه مخکې اووروسته په شامي، احیاء العلوم اونورومعتبروکتابونوکې ذکرده ،خوحضرت مفتی رشیداحمدصاحب رحمه الله په احسن الفتاوی( ج ۷صفحه ٦۵)کې لیکلي دي چې:«دخوراک په ابتداء اوانتهاءکې دمالگې څټلوپه هکله چې کوم اقوال په کتب متداوله وکې ذکرشویدي هغه دصحیح حدیث نه ندي ثابت،په دې باره کې چې څومره احادیث راغلي دي هغه ټول موضوعي دي،لهذاابتداء اوانتهاء الطعام بالملح ته سنت ویل تسامح اوبې پرواهي ده».

(٦)ـــ له سنتوڅخه داهم دی چې خوراک به دکاسې له منځ څخه نه کوي ، بلکه له پلوه څخه به یی خوري ترڅوپایه په پایه منځ ته پکې ورسیږي،ځکه په منځ کې برکت نازلیږي بایدچې هغه ترپایه وساتل شي.

(۷)ـــ بل داسنت دي چې له خپل لوري اوله یوځای څخه به خوراک کوي ځکه چې طعام هم یودی، لیکن که چیرې په کوم تال اوفتنوس کې مختلف رنگه یامختلف قسمه میوې اوبیلابیل خوراکونه کیښودل شوې وي، بیاچې کوم یی خوښ وي هغه رااخیستلی شي.

(۸)ـــ په ښي لاس باندې خوراک کول ضروري دي،له حضرت ابن عمررضی الله عنه نه نقل دي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي:اذااکل احدکم فلیاکل بیمینه واذاشرب فلیشرب بیمینه فان الشیطان یاکل بشماله ویشرب بشماله.کله چې یوستاسوخوراک کوي نوپه ښي لاس به خوراک کوي اوچې څښاک کوي بایدپه ښي لاس یی وکړي،ځکه چې شیطان په چپ لاس خوراک اوڅښاک کوي.البته دا ړتیاپروخت له چپ لاس نه هم مرسته اخیستی شي.

(۹)ـــ له ډوډۍ څخه ترفارغیدووروسته دخپلوگوتوڅټل سنت دي، یعنې خپلې گوتې به لاس پاک باندې ترپاکولوواړاندې وڅټي،له حضرت کعب بن مالک نه نقل دي هغه له خپل پلارنه روایت کوي چې : ان النبی ﷺ کان یلعق أصابعه ثلاثا. یعنې نبی کریم ﷺ خپلې گوتې درې ځلې څټلې په بل روایت کې راځي :کان النبی ﷺ اذاأکل طعاما لعق أصابعه الثلاث یعنې چې حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم به دریوگوتوخوراک کاوه.په اخر دخوراک کې یی څټلې چې په دې سره کامل نظافت اوښه

صفایی راځي .په مواهب اللدنیة کې دي چې څوک دخوراک په اخري کې ګوتې وڅټې الله تعالی به هغه سړي ته ددنیااواخرت مرښت ورنصیب کړي .له دې وروستي روایت نه داهم رامعلومیږي چې خواړه په درې ګوتوخوری اوکه اړتیاوې نوڅلورګوتې هم استعمالولی شي ،اودګوتوترپای ککړولونه بایدځان وژغورول شي.

(۱۰)ـــ دکاسې پاکول هم سنت دي، ځکه نبی کریم ﷺ فرمايي: څوک چې له کومې کاسې څخه خوراک وکړي ، بیاهغه وڅټي ،نوپه ځواب کې دغه کاسه ورته وایي :اعتقک الله من النار کما اعتقتنی من الشیطان ،الله تعالی دې تاله دوزخ اورڅخه داسې وژغوري څرنګه دې چې زه له شیطان څخه وژغورلم،په بل حدیث شریف کې دي : من اکل فی قصعة ثم لحسها استغفرت له القصعة.یعنې څوک چې کومه کاسه کې خوراک وکړي اوبیا یې پاکه کړي نودغه کاسه دهغه لپاره استغفاراودمغفرت غوښتنه کوي، په جامع الصغیرکې لیکلي دي چا چې کاسه اوګوتې وڅټلي الله تعالی به یی ددنیااواخرت مرښت نصیب کړي.

(۱۱)ـــ کومه لقمه اوګوله چې له لاسه ولویږي دهغې خوړل سنت دي همدارازکه له دسترخان څخه کوم زړی ولوید دهغه خوړل هم سنت دي ، که دچادلاسه څخه خولې ته تیارکړل شوې لقمه اونوړی ولویده دهغې همدغسې پرېښودل له اسراف څخه دي،بلکې ترنورې ډوډۍ دمخه به لومړی هغه لویدلې وخوري، بیادې نورخوراک کوي. له ابوالشیخ نه روایت دی وایی:هغه ګوله چې له کاسې په دسترخان کې ولویږي اوبیرته یې راپورته کړي خدای پاک به یی دسکون ، اطمنان اونورانیت زندګي اوددنیااواخرت مرښت نصیب کړي ،اوله مرضونوڅخه به یی الله تعالی په امن کړي اواولادبه یی عقلمندوي.دیلمي رحمه الله وایي چې له کاسې مړی ولویږي بیرته یی راپورته کړي الله تعالی به ښایسته زوی ورکړي اوله فقرڅخه به خلاص شي.

دخوراک لپاره دکیناستلوښه طریقه داده چې چپه پښه راماته اوکېټ کړي ښی پښه اوپتون ودروه وي،په فتاوی العتابیه کې راځي که چا څنګ لګولی وي یایی تکیه کړې وي ، نوپه داسې حالت کې څښل یاخوړل مکروه دي ،په فتاوی الشامیه کې راځي چې مختارقول دادی چې دتکیې په حالت کې یاپه لوڅ اوبربلندېسرخوراک کولوکې څه باک نشته،لیکن په جواهرالاخلاطي کې وایی چې په تکیه سره خوراک کول څه پروا نه لري خوپدې شرط چې دتکبرله وجې نه وي، که چیرې دتکیه وغیره صورتونوکې یی خوراک دتکبرپه وجه وي نوبیامکروه دی، او فتاوی الظهیریه همدې قول ته مختارویلي دي.په ترمذي شریف کې حدیث دی، له حضرت ابوجحیفه رضی الله عنه څخه روایت دی چې ویلي دي:قال النبی ﷺ أماأنافلاآکل متکیاًیعنې حضرت رسول الله ﷺ فرمایلي دي: چې زه په تکیه خوراک نه کوم.البته دضرورت په بنیادتکیه کول جایزدي.په لاره باندې تلونکي ته خوراک مکروه دي خوکه چاسرتورسرخوراک کولونوپدې کې څه باک نشته ،پدې شرط چې دتکبرله امله نه وي ، بل داچې زیات ګرم اوسوزونکی خواړه به نه خوري ،حدیث شریف کې دي:الطعام الباردفیه برکة والطعام الحارلابرکة فیه. یعنې په یخ خوراک کې برکت وي اوپه ګرم خوراک کې برکت نه وي،همدارازمطعومات اومشروبات به نه بویوي اونه به پکې پوکی (نفخ)کوي ،ځکه که چیرې دومره اندازه پوک پکې وکړي چې له اوازڅخه یی مثلاداف کلمه څرګنده شوه نودابیامکروه دی،حدیث شریف دی :النفخ فی الطعام یذهب باالبرکة.یعنې طعام ته پوکی کول برکت ختموي. دخوراک پروخت چُپ اوغلی کیناستل هم مکروه دي ،ځکه چې دادمجوسوعادت دی،لهذادخوراک پرمهال څه دخیراونفعې ،دوعظ اونصیحت خبرې کول په کاردي .په ډوډۍ باندې دنمکدان یاکاسې کیښودل مکروه دي ،همدارازپه ډوډۍ باندې دچاړې یالاس پاکول هم مکروه دي.

(۱۲)ـــ اوبه بایدپه درې کرته وڅښل شي،له حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چې حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې اوبه څښلې نودرې ځله به یی ساه ایسته اوویل به یی داهم ښې تیریدونکې دي اوهم ښې سیرابه کیدونکې دي یعنې سړی ښه ورباندې مړیږي.که چیرې دخوراک په وخت کې انسان ته پرنجی ورشي نوکه خوله کې یې لقمه وه دعذرله وجې نه ترینه الحمدلله ویل ساقط دي اوکه نه وه نوبیا ساقط نه دی.




# بدګماني او بهتان

احمد جنید مبارز

د ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمایل : د بدګمانۍ څخه ځانونه وژغورئ ځکه بدګماني ډېر بد درواغ دي، او په پټه د بل چا خبري مه اورئ، او د چا د عیب لټه مه کوئ، جاسوسي او چغلي مه کوئ، د چا سره تنافس یعني د دنیا په مینه کي لومړی والی او د رانیولو او خرڅولو په وخت کي یو پر بل باندي نرخونه مه لوړوئ، یو له بل سره حسد او بخیلي مه کوئ، او یو له بل څخه د خفګان په خاطر مخونه مه اړوئ، او یو له بل سره ورونه، او د خدای جل جلاله بنده ګان اوسئ.رواه مسلم

د حدیث شریف توضیح :

نبي علیه السلام په پورتني حدیث شریف کي د یو شمېر اعمالو څخه منع فرمایلې ده چي په ورځني او ټولنیز ژوندانه کي خورا بد اثر لري، ځکه ددې اعمالو په اخته کېدلو بدمرغي، جګړه، تفرقه، او بې اعتمادي د بشري ټولني د غړو تر منځ راپیدا کوي، حال دا چي د هغو څخه اجتناب د ورورولۍ، میني، محبت، او صمیمیت اړیکي د ټولني د افرادو تر منځ ټینګوي، او د اقتصادي، فرهنګي، او اجتماعي سطحي د پراختیا او ټینګښت لپاره کومکي واقع کیږي. دغه اعمال عبارت دی له :

تحسس، تجسس، تنافس،تدابر، او تحاسد څخه چي د هر یو تعریف به ولیکو :

۱_ تحَسُسْ : یعني د خلګو خبرو ته غوږ نیول چي دوی څه وایي، او بیا هغه په نامطلوب ډول او د ناروا اهدافو د تأمین په غرض د خلګو په منځ کي خپرول دي، ځکه د هر څه څخه مخکي د خلګو خبر،و ته غوږنیول ناروا او غیرمشروع کار دی.

۲_ تجَسُسْ : د انسان عیبونه لټول او بیا هغه عیبونه هر چیري خپرول او بل چاته ویل.

۳_ تنَافُسْ : یو دبله په داسي ډول مقابله کول چي د دوی په زیان وي لکه : یو د بل په خلاف د نرخونو لوړول.

۴_ تحَاسُدْ : یعني د بل چا د مال او مرال په هکله حسد کول او هم تبَاغُضْ یعني یو له بل سره بغض او کینه درلودل هم د همدې اعمالو په ډله کي شمېرل کیږي، چي نتیجه یې بېله دینه چي بشري ټولني ته ګټه نه لري بلکي د یوې ټولني د غړو تر منځ جلاوالی او نفاق رابرسېره کوي او دوی یو د بله لیري باسي. نو ځکه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم دا ټول اعمال بد ګڼلي او په مقابل کي یې د اسلامي ټولني ټول افراد ورورولۍ ته رابللي او د بدګمانۍ او بدبینۍ څخه یې منع کړي دي.

د نوموړي حدیث شریف ګټې:

۱_ د اسلام مبارک دین بدګماني ډېر بد او غټ درواغ ګڼلي دي.

۲_ د خلګو خبرو ته غوږ نیول او بیا نورو ته رسول او هم د نورو د عیب پلټنه په دې هدف چي هغه د ټولو اسلامي او انساني مقرراتو پر خلاف نورو ته ورسوي، ستره ګناه ده.

۳_ حسد او یو د بل سره کینه درلودل د وروری او اخوت اړیکي د ټولني د افرادو تر منځ پرېکوي او د بد مرغیو د راوستلو موجب ګرځي.

۴_ په راکړه ور کړه او تجارتي معاملاتو کي چم او درغلي کول ناوړه کار او د اسلامي او انساني اخلاقو مخالف عمل دی.

۵_ تدابر یعني یو د بل څخه مخ اړونه او د کوچني موضوعاتو له امله یو له بل سره د ملګرتیا او وروری اړیکي پرېکول هم د ناوړه اعمالو څخه شمېرل کیږي چي باید پوه او هوښیار انسانان، او د اسلام مقدس دین پیروان د همدې اعمالو څخه ځان وساتي.

په پای کي د الله تعالی څخه ددې لیکني هر لوستونکي ته پر دې لیکني باندي د عملي کولو د توفیق دعاء غواړم، لومړی دي الله ماته او بیا تاسو ته د عمل کولو توفیق در کړي.

# از صنعت فحشاء تا امپراطوری ابتذال

عبدالناصر امینی

پس از فروپاشی حکومت طالبان و ایجاد نظام جمهوری، که با داعیهٔ دموکراسی پا به عرصهٔ وجود گذاشت، همه چیز به صورت سرسام‌آور به سوی آزادی بی‌مهار رفت. نظام سیاسی، اقتصادی، اجتماعی و فرهنگی کشور بدون درنظرداشت ارزش‌های معنوی، میهنی و بین‌المللی، آغشته به فساد شده و در میان مفسدین دنیا مقام اول را کسب نمود.

روند فساد آن قدر قدرتمند و برنامه‌ریزی شده بود که به زودی و در کمترین فرصت توانست تمامی شاخه‌های حکومت و محورهای زندگی اجتماعی مردم را در بر بگیرد و خواسته و ناخواسته همه را مبتلا سازد، به طوری که کمتر ادارهٔ دولتی یافت می‌شود که عاری از فساد اداری، رشوت، سوء استفاده از مقام و منصب و یا حداقل غفلت وظیفوی باشد. ناهنجاری‌های سیاسی، اختلافات درون‌حکومتی، قوت‌یافتن مخالفین نظام، تنش‌های فیمابین زورمندان محلی، اختلافات و نزاع‌های قومی و حزبی هر روز مردم ناحیه و ولایتی را به خاک و خون می‌کشد و چادر سیاه ناامیدی و یأس را بر رخ این وطن می‌گسترد. خون انسان‌های بی‌گناه، دادخواهی ندارد و عاملین کشتار هموطنان ما هرگز مجازات نمی‌شوند. اما در چنین فضای سیه‌روزی و تیره، صنعت فحشاء روز به روز رشد نموده و تبدیل به عنصر- اصلی حیات برخی ابتذال‌گرایان شده است. رشد حیرت‌آور رسانه‌های مبتذل که با حمایت دست‌های پنهان خارجی به ارزش‌های اسلامی، لطمه می‌زنند و در پی ترویج اباحه‌گری و برهنگی هستند تنها دست‌آوردی است با سرعت فوق نور به‌پیش می‌رود و هر روز برای پیش‌برد اهداف خود و از بین بردن غیرت و حمیّت مردم و خصوصاً نسل جوان طرحی نو می‌اندازند و هیچ مرجع و یا مرکزی جلودار و مانع آنان شده نمی‌تواند. یقیناً که یکی از اصلی‌ترین مستندات مخالفین نظام نیز همین رسانه‌های مبتذل و نشر- و اشاعهٔ فحشاء به صورت گسترده در کشور است. امروزه در وطن، فحشاء به یک صنعت پر رونق و پر درآمد تبدیل شده و با طرح برنامه‌های پر زرق و برقِ رقص و پایکوبی، موسیقی و خوانندگی،از یک سو سرمایه‌ها و حاصل دست‌رنج این مردم را به تاراج می‌برند و از سوی دیگر درپی پایه‌گذاری امپراطوری ابتذال در این وطن هستند. و بدتر از بد و مایهٔ شرمساری آنست که اداره‌ای حکومتی تحت رهبری وزارت معارف به ملکهٔ این امپراطوری مدال شجاعت می‌دهد و می‌خواهد از وی اسطوره بسازد. حال خود قضاوت نمایید که فحشاء تا چه‌قدر به شکل فزاینده رسوخ یافته که وزارت معارف که قلب تپندهٔ تعلیم و تربیه و پایه‌گذار نسل سالم در وطن است نیز از آن مصون نمانده و به نحوی به آن مبتلا شده است. اما جای مسرت است که مردم غیرتمند و مسلمان ما با محوریت علمای بزرگوار جهت پیش‌گیری از این وبای خانمان‌سوز اقدام نموده و با ایجاد تجمعات، تظاهرات خواستار مهار رسانه‌ها و لغو برنامه‌های مبتذل شده و وظیفهٔ وجدانی و شرعی خویش را ادا نمودند. امید است که مردم متدین در این زمینه وجاهت دینی خویش را نیز ادا نموده دربرابر فحشاباعلمای کرام ودانشمندان متدین خودهمصدا وهمنوا باشند و نگذارد، کشوری که صاحب تاریخ و تمدن اصیل و ارزشمند است، بازیچه اندک‌افراد بوالهوس شده و عزت و کرامت این مردم شریف را لکه‌دار کنند .



# ګلخونه

## غزل

#ذاکر

په لمنه کې ستومانه قافلې وړي
دا دوینو طوفان څه توندې څپې وړي

درناوودامام لښکرې راغلې
په بلاپسې دنورسپنې نیزې وړې

په تنها کو پل کوي دمنزل لارې
لاترکومه پراووړو ویرجنې شپې وړی

عشقه بیادې اوبوي خمارې هیلې
لیوني ګوره په سرباندې لمبې وړې

ستړي ستړې کلیوال دلمرله غیږې
ښکارې بیا چیرته په لپوکې سپیدې وړي

تاریخونه یې دهر غشي له واره
په ځولیوکې رنګینې زماني وړي

دغازي دلوړ همت له برکته
ذاکر ځکه په غزل کې حماسي وړي

## غلیمګیه

#ملامطمئن

ستا په غم باندې خوشحال یم غلیمګیه
پرمختګ ته دې زوال یم غلیمګیه
ستا د کبر سومنات به را نسکور کړم
زه د وخت ثاني ابدال یم غلیمګیه
ستا به سپینه ماڼۍ ړنګه کړم که خیر ؤ
در روان په لوړ مورال یم غلیمګیه
د مغرورو قتلول مې وظیفه ده
د مظلومو خلکو ډال یم غلیمګیه
هېڅ چا نه یمه تر اوسه پرزولی
د ننګونو ستر مثال یم غلیمګیه
مطمئن دې په آرام کله پرېږدمه
سراسر درته جنجال یم غلیمګیه

## مه کوه

د مسکینانو په وړاندې د خپلو شتمنیو خبرې مه کوه.
د ناروغانو په مخکې د خپلې روغتیا نکلونه مه کوه.
د بې وسه په مخکې د خپل ځواک خبرې مه کوه.
د بدمرغه انسان په مخکې د خپلې نیکمرغي داستانونه مه بیانوه.
د بندي په مخکي د خپلې ازادي خبرې مه کوه.
د شنډ او بې اولاده انسان په مخکې د خپل اولاد کیسې مه کوه.
د یتیم په مخکې د خپل پلار کیسې مه کوه.

# رحمان بابا

که په گنج دشاهي فخرشهريارکا — عاشقان يې ددلبروپه رخسارکا
خرقه پوشوپه خرقه کې دی مونډلی — هغه حظ چې په دنيايې دنيار دارکا
پتنگانولره خدای په اورکې ورکړ — هغه عيش چې يې بلبلې په گلزار کا
هغه مخ چې مادر زادښايسته نه دی — مشقت دمشاطې واړه مردار کا
ياردناز له خوبه پاڅي پسې گرځي — چې فلک دعاشقانو بخت بېدار کا
نيمه شپه يې يار ترسره پورې کښېني — لکه شمع چې څوک بله په مزار کا
دمستۍ د هوښيارۍ يې يون څرګند دی — په هرچاکې چې څه وي هسې رفتار کا
رحمان هسې بې وقوف سوداګر نه دی — چې ددين متاع بدله په دينار کا

## څلوريزه

عشق امتحان مې کړه دميني مدرسه وايم
زه د پاکي ميني هر مضمون په عقيده وايم
حورو ته به ووايم چې عشق له تاسو ښکلې و
حوري به حيراني شي چې زه ستا ترانه وايم

## #خپلواک

په وروستي پلو مې خاورې وانه ړوي
په يادگار و مې خاورې وانه وړي
چې يې نردې کړو يو له بله گرانه
په ارمانو مې خاورې وانه ړوي
نور مې نه زړه، نه حافظه کې زور شته
چې په يادو مې خاورې وانه ړوي
په هر ماتم دې ترسهاره ناست وم
په شوگيرو مې خاورې وانه ړوي
ځآن مې سيزه لاره مې ستا رڼا کړه
خو په شغلو مې خاورې وانه ړوي
دا نوې لارې مو جدا جدا دي
خو په زړو مو خاورې وانه ړوي
پرون سپيڅلي نن بدمرغه هرڅه
په پرونو مې خاورې وانه ړوي
هغه مې ياد کړل، دغه نه يادوم
پام په هغو مې خاورې وانه ړوي
خپلواک چې څه کړي، ښکاره يې کړي
چې په رازو مې خاورې وانه ړوي

## څلوريزه

ورته اودس د تن په وينو کوو
له پرهارو سره لمونځونه کوو

په شهادت مو اخيرى سلام دى
دومره اوږده دا رکعتونه کوو

## څلوريزه

ځان به داسې کړم سينګار په خپلو وينو .....
چې شکلا ته مې دحورو هم سودا شي.....

چې ځواني دعشق په اورکې ورته دود کړم.....
ګوندې ومې منې خدای رانه راضا شي.

# که شرم

# «لکۍ» لرلی...

هېواد ریان

افغانستان د تاریخ په اوږدو کې سختې ورځې تېرې کړې او اوس هم افغانستان د خپل تاریخ له حساس پړاو تېرېږي. د امریکایي او ناټو عسکرو شتون، بې‌واکه چارواکي، پردی رسنۍ، پردی جګړه، پردي جاسوسان، د نیابتي جګړې ډګر، وژنې، بمباري او .... دغه شېبې د ګران هېواد په تاریخ کې ثبتېږي او ځینو دغه حالت درک کړ او پرضد یې وسله‌واله جګړه پیل کړه...

دلته د روسیې لاسپوڅي نورمحمد تره‌کی، ببرک کارمل، حفیظ الله امین، ډاکټر نجیب او نور هم تېر شوي او له کارمل پرته نورو یو هم دومره د روسیې امر منونکي نه وو، لکه اوس د امریکې مننونکي...

اوسني ګډوله حکومت د افغانانو د ویاړ تاریخ داغ کړ او تر دې حده ذلیله شول، چې د امریکا هر امر یې ومانه او د غلامۍ سرونه یې ورته ټیټ کړل.

د جان‌کېري په یو امر دواړو یو بل ته غاړې ورکړې او پخلا شول او اوسني د ذلالت نه ډک حکومت ډېره یې کېښوده.

اشرف غني او عبدالله هغه کارونه وکړل، چې راتلونکی نسل به یې په لوستلو هم د شرم احساس وکړي، چې په ۲۱ مه پېړۍ کې موږ داسې ذلیل چارواکي لرل....

د امریکا د بهرنیو چارو وزیر ریکس ټېلرسن د تېرې دوشنبې په ورځ بګرام ته راغی او د دې پرځای چې ارګ ته راشي؛ نو دواړه شرمیدلي بګرام ته ورغلل او ناسته یې هلته وکړه.

**د امریکا سفارت د ناستې اصلي انځورونه خپاره کړل؛ خو ارګ په ډېرې بې شرمۍ په انځورونو کې ګوتې ووهلې او ځینې برخې یې ترې لرې کړې.**

**پرون نیویارک ټایمز ورځپاڼې پر همدغو خپاره شویو انځورونو تبصره کړې وه، چې اوسنی ګډ حکومت څنګه حقایق تحریفوي او د خپل ملت په سترګو کې خاورې اچوي.**

نیوریارک ټایمز لیکلي وو«په دواړو انځورونو کې ښکاري چې غني او ټېلرسن په یوې بې کړکۍ خونه کې ناست دي، د خونې په منځ کې مېز پروت دی، پر هغه د چایو ترموز، دوه ګیلاسونه او د اوبو بوتلونه ایښي دي، شاته په دېوال باندې دوه ټلویزوني سکرینونه نصب دي او د دواړو لوریو پلاوي یو تربله مخامخ ناست دي.

مګر د ولسمشر ماڼۍ «ارګ» له لوري په خپاره شوي انځور کې په دېواله باندې هغه نظامي ساعت لرې شوی چې امریکایي پوځ یې د نړیوال وخت معلوملو لپاره کاروي. همدا راز هغه سور رنګه برېښنایي زنګ هم نه معلومېږي چې د اور لګېدنې او خطر پر مهال وهل کېږي، تر څو دا حقیقت پټ کړي چې ناسته په امریکایي اډه کې شوې.خو د امریکایانو له لوري په خپاره شویو انځورونو کې دېوالي ساعت او د خطر زنګ دواړه لیدل کېږي.»

**امریکا له یوه لوري زموږ شرم پسې راخیستې؛ خو له بل لوري یې بیا رسنۍ زموږ د ذلیله چارواکو ناستو حقیقتونه نړیوالو ته ښيي.**

**اشرف غني او عبدالله دواړه د تاریخ توري څېرې دي او خپل نومونه یې د شاه شجاع نه هم نور ذلیله کړل**

# دملي اردو عسکر ولي باید ووژل شي؟

لیکوال ”ابوعُزیر

که څه هم په شریعت محمدي کښی دبی گناه انسان دویني تویول له گناهِ کبیره وؤ څخه شمیرل کیږي

خوپه بعضي ځایونو کښی شریعتِ محمدي دجرم په ثابتیدو دانسان قتلولَ جائز گڼلي دي

چي دهغي جرمونه څخه یوهم دکافرو ملگرتیاکول اوخپل مسلمان ورور وژل دي

دحکومتي عسکرو دمرگ دجواز لپاره همدایوه خبره کافي ده

چي کله هم کوم نفوذي مجاهد یا بل کوم غیرتي اوبااحساسه عسکرپه خارجایانو بریدکړی دی اوهغه ئي مردارکړی دی

نوهمدغوحکومتي عسکرو بیاهغه نفوذی اویا غیرتي اوبااحساسه عسکرپه شهادت رسولی دی

ددي خبري دثبوت لپاره دلغمان اوسنی پیښه ښکاره ثبوت دی اوپه نوروځایونو کښی ئي هم دمیډیا له خوا وخت په وخت خبرونه نشرشوي دي.

سره ددی چی همدغه مجاهد دداخلي عسکرو دوژلو پرځای خارجي عسکرمردارکړي دي

اومهمه خبره داچي دطالبانو جنگ دافغانانو سره ندی

بلکه امریکي دطالبانو په حکومت حمله وکړه او ددوی جوړکړی اسلامي نظام ئي ختم کړو نوهرکله چي امریکه دطالب دښمنه شوله نوهغي دښمن په افغانستان کښی پخپل سروخت نشوتیرولی نو داردو، عسکرو، اواربکیانو په نوم ئي خپل باډي گارډان اوساتونکي وروزل

ترڅو دوی دخارجیانوڅخه دفاع وکړي او دطالب په ختمولو کښي مهم کردار اداکړي، هماغه وه چي په کوم ځای کښی به هم امریکایانو چاپه وهله نو داخلي عسکربه ترینه مخکښي او وروسته روان ول ترڅو امریکایانو ته څوک تکلیف ونه رسوي

نوطالب مجبور شو چي دخارجیانو دامخکښني لښکر اول ختم کړي اوبیا دهغي نه روسته خپل اصلي دښمن خارجیان په نښه کړي.

ددي داسی مثال دی لکه ستا دیوملَک سره دښمني شوله اوهغه ملَک خان ته په تنخواه خلک پیداکړل ترڅوخپل ځان اوخپل کور والا له تاڅخه وساتي ، نواوس چي هرکله ته پخپل دښمن دحملي اراده وکړي نو همدغه دده تنخواه خواره په تاډزي کوي اوتاوژني.

نوپداسي وخت کښي به تاته دخپل دښمن څخه مخکښي ددي تنخواه خورو وژل ضروري وي ددی نه پس به ته خپل اصلي دښمن ته رسیږي اوهغه به وژني

همدغه شان اوسنی اردو، عسکر اواربکیان هم دي،

که په دوی باندي نن امریکي تنخواه بنده کړه نودوی ټول ورته خپله وظیفه پریږدي نوددینه داخبره ښکاره معلومیږي چي امریکایانوته هرڅوک چي تکلیف رسوی هغه که طالب وي اوکه بااحساسه عسکر نوداسړی دحکومتي عسکر هدف دی

نومعلومه داشوه چي دلته حکومتي عسکروته دخارجي عسکرو وینه دافغانانو دویني څخه ډیره قیمتي ښکاریږي

نوچي کله داخبره واضحه شوه چي خبره ټوله دکرائې اودتنخواه ده نوهرکله چي دملک دتنخواه خورو وژل روا اوجائزدي نوهمدغه حال دحکومتي عسکرهم دی.

# په سعودي کې

# د دولت تازه اقدامات

حسن مومند

دارښتیا ده چې دشاه فیصل دقتل نه پس دسعودي عربستان په بهرني سیاست مسیربېخي بدل اوپکې لوي بدلون راغلو ؛ داسلامي نړۍ لپاره داخورامهم هېواد په ډېرې تېزۍ داسلامي نړۍ نه په لرې کېدو او لویدیځ ته عموماً او امریکا ته په ځانگړې ډول داسې ورنېږدې شو چې دامریکا په مهمو متحدینو کې شمېر شو چې دسعودي په بهرنۍ تگلارې کې دادومره سترمنفي بدلون دنړۍ دټولو ژمنواو دردمنو مسلمانانو لپاره دډېر تشویش سبب و؛ ټول پرې خفه وو او ټول دشاه فیصل دوخت دبهرنۍ کړنلارې غوښتونکي وو .

خو له دې انکارنشي- کېدای چې پدې هېواد کې دخلکوپه ټولنیز ژوند کې دداسلامي لارښووونوډېر څرک ترسترگوکېږي .

په داسې حال کې چې د نورو عربي هېوادونو دولسونوپه ټولنیز ژوندکې داسلامي لارښووونوعملي وجود ډېر کم ترسترگوکېږي دسعودي دولت چې په خپل هېواد کې کوم ټولنیز نظام رایج کړی و هغه ترډېره حده اسلامي لارښوونو ته نېږدې و اولاهم دی ؛ په بازارونو او ښارونو کې په علني ډول چا دفسق او فجور مرکزونو او کاروتوته اجازه نه ورکول کېږي ؛له کورونو بیرون مېرمنې له بې سترۍ منع کولی شي؛ دهلکانو ښوونځي او پوهنتونونه جدا او دانجونو لپاره جدا دي؛دپیل او پای وختونه یې هم بېل بېل دي ترڅو په لارو کوڅو کې دیوځای تلو راتلو مخنیوی وشي.

په مېرمنو کې دازادۍ او بې سترۍ دمخنیوي په موخه ددولت دډېرو ځانگو او لویو پوستونو نه مېرمنې لرې ساتلای شویدي؛که څه هم دصحت او تعلیم په څېر په ځینو ځانگو کې مېرمنې موظفې دي خو ښه دا ده چې ټولې خپلو کار ځایونو ته مستورې ځي.

همداراز پدې هېواد کې داوقافو او مذهبي چارو وزارت ترډېره حده بااختیاره و او په مذهبي چارو کې به دولت ځان له مداخلې لرې ساتلو.

شعائرالله ته پدې هېواد کې دقدر په نظر کتل کېږي او دبې احترامۍ تصوریې هم بیخي نه شي کېدای.

دحرمینو شریفینو او دلته دنړۍ دگوډ گوډ نه دراتلونکو حجاجو او معتمیرینو خدمت په رښتیا چې مثالي دی او دخوښۍ خبره داده چې له هرې نه بلې ورځې ته پکې ښه والی راځي او دهرکال انتظامات دبل نه ښه کېږي.

داهم ښه خبره ده چې دهېواد دملک یا پاچا لقب خادم الحرمین الشریفین دی.

ددې ترڅنگ قاتلانو، غلو، لوټمارانو، دنشه یي موادو قاچاقبرانو، قماربازانو، زناکارو او نورو ته سزاگانې ورکول کېږي او پدې هکله دې هېواد دنړۍ داعتراضو چندان پروانده لرلې او نه یې دنړۍ فشار منلی دی نو ځکه دا هېواد دنړۍ په ترټولو دامن نه ډکو هېوادونوکې شمېر دی او رښتیا دا ده چې دلته دچا ځان،مال او عزت هیڅ ډول خطر ندی متوجې او نه پدې اړه کله شکایت رامخې ته شویدی.

او پدې هېوادکې چې دمسلمانانو قبله کعبة الله،مسجد نبوي او درسول الله صلی الله علیه وسلم مبارکه روضه ده داسلام منبع ده،درسول الله صلی الله علیه وسلم دولادت،بعثت،وفات او دوحې دنزول ځای دی نو دټولې نړۍ دمسلمانانو لپاره یې اهمیت،ورسره محبت او قلبي تړاو یو طبعي خبره ده ؛ددې هېواد په مادي او معنوي پرمختگ دنړۍ مسلمانان خوشالو ي او په مادي او معنوي تنزل او دبدو پېښو او حالاتو په رامنځته کېدو وربانديې مسلمانان خفه کېږي.

دپاچا عبدالله دمړینې او دپاچا سلمان دراتلو نه پس دسعودي عربستان په

کورني او بهرني سیاست کې ځینې بدلونونه رامنځته شویدي چې زیاتره یې مسلمانان تاواني بولي نو دمسلمانانو لپاره ډېر دتشویش لامل شویدی.

دخلیج او منځني ختیځ ټولو هېوادونو سره دسعودي عربستان روابط یو شان نه وو؛ځنې یې چې نېږدې ملګري او اتحادیان ګڼل کېدل نو ځنې نور یې سخت مخالفین هم وو؛سعودي خپل اتحادیان ډېر ښه پاللي دي او ښه دا وه چې دخپل یو مخالف سره یې هم ځان په دښمنۍ او شخړه نه وو اخته کړی او ځان یې له جنګونو لرې ساتلی و .

ددې هېواد سره دټولې نړۍ دمسلمانانو دمحبت او عقیدت هم همداغوښتنه وه چې باید په نړۍ کې دمسلمانانو داسې هېواد نه وي چې سعودي یې پرضد عسکري اقدام وکړي او یادسعودي پرضد کوم اسلامي هېواد عسکري اقدام وکړي.

خو له بده مرغه چې دې هېوادخپله بې طرفي هاغسې ونه شوه ساتلای لکه څرنګه چې پکار وه نو نن سعودي په شام کې دبشارالاسد دملېشو په مقابل کې په نسبي ډول او په یمن کې دحوثیانو په مقابل کې په کلي ډول دجنګ حالت کې دی او پدې یو ډګر کې یې هم بریالیتوب ندی په برخه شوی چې دا ددې هېواد دحیثیت لپاره ډېره دتاوان نه ډکه خبره ده.

دپاچا عبدالله دوفات نه پس چې سلمان ته دسعودي عربستان پاچاهي ورمنتقل شوه نو هغه په دولتي اداري کې ډېر لوی بدلونونه رامنځته کړل؛دسلمان ورور مقرن بن عبدالعزیز ولي عهد و خو هغه یې لرې او پرځای یې خپل ۵۷ کلن وراره شهزاده محمد بن نائف ولي عهد کړ خو لږه موده پس یې محمدبن نائف هم له دې منصب نه ګوښه کړ او دیو شاهي فرمان په جاري کولو یې خپل ځوی محمدبن سلمان ولی عهد کړ.

محمد دسلمان بن عبدالعزیز ددریمې مېرمنې فهده فلاح مشر-زوی دی چې خپل پلار ته ترنورو ټولو بچو زیات نېږدې او پرې یې دنورو ټولو نه زیات اعتماد دی.

دشکل نه ډېر ښه ښکاري خوپه فکر کې یې دلبرالزم ریښې مضبوطې دي اوپخپله یې ښه په جهر ویلي دي چې سعودي به ماډریټ اسلامي دولت ګرځوي.

په همدې شپو روځو کې چې محمدبن سلمان ولی عهد شو دډېرې اوږدې مودې راهیسې سعودي دبانډنیو چارو وزیر سعودالفیصل هم پاچا ته خپله استعفا وړاندې کړه چې پاچا قبوله کړه او د ۱۹۷۵ م راهیسې دسعودي دبانډنیو چارو دا وزیر په کور کیناست.

ددې ترڅنګ دملي امنیت دشورى او دپاچاسلاکار بندر بن سلطان یې هم له خپلې دندې ګوښه کړ؛بندربن سلطان پخوا په امریکا کې ۲۲کاله دسعودي عربستان دسفیر په توګه دنده ترسره کړې وه.

ورسره یوځای دمکې والي شهزاده مشعل او دریاض والي شهزاده ترکي هم تبدیل کړل دوئ دواړه دپخواني پاچا عبدالله زامن دي.

دمحمدبن سلمان دولي عهد کېدو نه پس سلمان اعلان وکړ چې په تېلو دخپل هېواد داتکاء حتمول او خپل هېواد یو صنعتي هېواد ګرځول غواړي؛ولي عهد محمدبن سلمان ددې لپاره ډېرښه طویل المدت پلان جوړ کړی چې ۲۰۳۰ م وژن نوم یې ورکړی او وایي چې ددې هدف لپاره یې دیو مستقل ډېر سترښار دجوړولو لپاره د ،،نیوم،، په نوم دپروژې اعلان هم وکړ چې به پرې نېږدې ۵۰۰ ټریلیونه لګښت راځي .

محمدبن سلمان فکر کوي چې تر ۲۰۳۰ م پورې به یې هېواد صنعتي هېواد ګرځېدلی وي اوله تېلوپرته به یوه ښه اقتصادي منبع په لاس ورغلې وي .

دمحمدبن سلمان داقداماتو نه پس داسې ښکاري چې هغه خپل هېواد دسیمې دترټولو لوی ځواک په شکل کې لیدل غواړي ترڅو دده په فکر په سني هېوادونو کې دایران دمداخلو مخنیوی وشي .

د۲۰۱۵ م په مارچ کې دحوثیانو پرضد داتحاد جوړېدل او دفوځي عملیاتو پیلول هم دهمدې هدف لپاره وو.

ددې عملیاتو په اړه فکر کېدلو چې په لږ وخت کې به ښه نتایج ورکړي خو داسې ونه شوه بلکې داعملیات دومره اوږده شول چې اوس یې سعودي ته دودرولو او ورنه دځان خلاصولو هیڅ چل نه ورځي.

په همدې لړ کې دایران سره هم روابط دخرابۍ وروستو حدودوته رسېدلي دي او دروان ۲۰۱۷ م کال په جون میاشت کې سعودي او خلیجي هېوادونو دقطر سره هم اقتصادي او دیپلوماتیکي اړیکې پرې کړې.

پرقطر تور و چې دایران په لمسون په سیمې کې بدامنۍ ته لمن وهي او دځینو سخت دریځو ډلو سره مرستې کوي.

دایران په مقابل کې دمحمدبن سلمان دریځ ډېر سخت دی نو ځکه یې دایران سره هر ډول خبرې اترې رد کړیدي.

دسلمان دواکمنۍ پرمهال ۲۰۱۵م په دسمبر کې په ړومبي ځل په سعودي کې نه یواځې دا چې مېرمنو ته درایو اجولو اجازه ورکړل شوه بلکې دځان کاندیدلو اجازه هم ورکړل شوه.

همدراز پخواني دریځ ترپېښو لاندې شو او دروان کال ۲۰۱۷م په ستمبر کې دولت مېرمنو ته دموټر چلولو اجازه هم ورکړه.

دنویو اقداماتو په لړ کې یو ډېر حیرانونکی اقدام په سعودي کې دفساد اوکرپشن دله منځه وړلو په نوم دشهزادګانو نیول او دیو شمېر وزیرانو او نورو لوړپوړو چارواکو دخپلو دندو نه لرې کول دي.

په زړه پورې دا ده چې داداري فساد دمخنیوي په نوم اداره رامنځته شوه او د دې اداري درامنځته کېدو ایله څو ساعتونه تېر شوي ووچې ۱۱ شهزادګان او ۴ برحال او په لسګونو پخواني وزیران ونیول شول.

ترڅنګ یې دنیشنل ګارډ وزیر شهزاده میتاب بن عبدالله او دسمندري قواو مشر عبدالله بن سلطان هم له خپلو دندو ګوښه کړل.

په دومره زیات شمېر کې دشهزادګانو،وزیرانو او نورو لوړپوړو چارواکو نیول یاله دندو ګوښه کول هسې یو تصادف او عادي پېښه نده؛بلکې له دې لارې محمدبن سلمان غربي نړۍ او په ځانګړې ډول امریکا ته دا پیغام ورکول غواړي چې سعودي کې نور زاړه عنعنات له منځه تلونکي دي او هېواد ډېر ژر دغربي نړۍ سره ځان همغږی کوي؛دلته زورورو خلکو ته کومې استثناګانې ورکړل شوې وې هغه له منځې تللې دي او دلته اوس ترټولو قوي وګړي هم دقانون نه،نه شي خوندي کېدای.

ددې ترڅنګ ددې ترشا یو سترهدف داهم دی چې دشاهي کورنۍ شهزادګان او نور غړي پرمحمدبن سلمان له نیوکو ځان لرې وساتي او هیڅکله پرمحمدبن سلمان داعتراض کولو جرأت ونکړي.

داموږ ځکه وایو چې پدې وروستیو کې دشاهي کورنۍ دځینو غړو دشخصي-مجلسونو نه داسې خبرونه خپاره شویدي چې پکې پرمحمدبن سلمان نیوکې شویدي او دیمن په جنګ کې دسعودي په راښکېلولو او دځوانانو لپاره دکار پیدا کولو کې دپاتې راتللو له امله یې ګرم کړیدی.

محمدبن سلمان دشاهي کورنۍ دځینو غړو دهمداسې خبرونه خبرونو ځکه یې دا اقدام وکړ ترڅو دټولو لپاره عبرت شي.

دا دقدام ځکه عادي نه و چې وربانديې دامریکا ولسمشر ټرمپ هم تبصره وکړه او ویې ویل:دپاچا سلمان او دهغه ولی عهد په استعدادونو مې بشپړه اعتماد دی هغوئ ښه پوهېږي چې څه کول پکار دي:دکومو تنانو سره چې په ښکاره بدسلوک وشو دوئ هماغه خلک دي چې له کلونوکلونو راهیسې یې دهمدې هېواد نه ګټې پورته کړیدي.

په زړه پورې خودا ده چې ددې اقدام سره څنګ په څنګ په همدې ورځ دوه نورې پېښې هم رامنځته شوې .

دلبنان لومړي وزیر سعدالحریري دسعودي عربستان په پلازمېنې ریاض کې خپله استعفاء اعلان کړه او خپلې دندې داستعفاء ورکولو سبب یې ده ته متوجې خطرونه وګڼل او ترڅنګ یې په لبنان او ټولې سیمې کې دټولو بدامنیو پړه پرایران او دایران دحمایت نه پربرخمنې شیعه ملېشې حزب الله ورواچوله.

همدا راز په همدې ورځ دحوثي شیعه ملېشو له لورې پرسعودي توغندي وتوغول شو چې دریاض هوایې ډګر ته څېرمه دسعودي دامنیتي ځواکونو په هوا کې وویشتلو او دریاض هوایې ډګر یې دضرر نه خوندي پاتې شو . دتوغندي دتوغول کېدو پدې پېښې دسعودي دولت په سختو ټکو غبرګون ښکاره کړ ؛ ددې مسئول یې مخامخ دایران دولت وګڼلو او ویې چې ډېر ژربه ایران دخپل عمل سزا وڅکي .

لنډه داچې په سعودي کې ټولو تېزو بدلونونو ته دنړۍ مسلمانان په ښه نظر نه ګوري اودا نه یواځې ددې هېوادبلکې دټول منځني ختیځ په تاوان بولي نویې هیله ده چې له داسې اقداماتونه دا دولت ځان وساتي ترڅو په سیمې اوهېوادکې حالات لا زیات خراب نه شي اومنځنی ختیځ دنوروناخوالونه په امن کې شي .

# دکابل جنرالان یې څه ځواب وايي؟

صلاح الدين "صارم"

ډېر ځله په رسمي دوايروکې تدريمې رتبې دښکته مامورينو او مؤظفينو دا وينا وي چې " مونږ خو ماتحت افراد يو اودسرخبره له پورته چارواکوسره ده، چې په دې سره خپل مسؤليت په يوډول له ځانه په بل ور واړوي او ځان ته برائت ورکوي، ولې په حقيقت کې د چارواکو په ګډون ټول نظام دچلښت اکسيجن د دوی له لارې اخلي او ښتياهم چې يوادنی مامور وغواړي په کارکې هرډول بنده او خنډ پيداکولی شي .

په همدې ډول ده چې هرڅېرته او هرټولنيز چوکاټ کې فردي مسؤليت برائت نه شي مونډلی اوله يوې اداري وجيبي سره ډېر نور اجتماعي اوعرفي مسؤليتونه دي چې هيڅکله يې لرونکی په يوه محدوده کې حصار نه شي پرېښودلی، له دې ټولو ورهاخوا ديني وجيبه اومسؤليت ترهرڅه ور پورته دی، بلکې دغه ټول واحدونه او حتی نظام بايد دهمدغه مسؤليت په رڼاکې وجود ومومي .

خبره مې مسؤليت ته دپاملرنې او دطالبانو په بريدونو کې دمؤثريت راز افشاکولو په نيت روانه کړې، هسې خو مو هم وطن دجنګونو اوجګړو لپاره دنړۍ په نقشه کې ځانته همدا ځای غوره کړی او دهروخت وګړي يې دجګړو په لاملونو او حالاتو غږيدلي، نن هم دنن په حالاتو کې دوه مهم ټکي ترپام راغلي او له لوستونکو سره يې شريکوم .

که څه هم دکال له پيله جنګونه کرار شوي نه دي اودهيواد په هره برخه کې داسې ورځ نه ده تېره شوې چې هلته دې جنګ او بمبار نه وي شوی، سره له دې چې پيل يې هم حکومتي چارواکي دتصفيوي عملياتو په نامه وکړي ولې پايله يې بېرته هغوی ته خساره او ناکامي وي .

خو په مختلفو محاذونو دطالبانو ورستيو بريدونو چې په بېلابېلو تکتيکونو اومهارتونو يې ترسره کړل° يوجلاپيغام له ځان سره درلوداو ډېر مهم راز پکې نغښتی دی، دکابل جنرالانوته يې بله هيڅ داسې لاره او پوزه پرې اينښې نه ده چې نور دملت په وړاندې په رسمي او عسکري يونيفورم کې راوړاندې شي .

دنړۍ دټولو پرمخ تلليو هيوادو ملاتړ، وسلې، پيسې، استخبارات اوعسکر ورسره دي، خوپه هيڅ ډګريې توره ونه کړه، سرهددې چې په ټوله معنااله درباري پوهې او هوښياری برخمن اوله زړه نه يې ځانونه ددوی يابوګان جوړکړي " خوچې نه کوي حبيب څه به وکړي خوار طبيب" راشل يې نه کړه اوپه تمامه معنا ناکام شول .

طالبانو وروستيوسياسي بدلونو اود کابل چارواکو بې ځايه اوبې وسه ګوت څنډنواوسرزورۍ ته دځواب په ډول په پکتيا، کندهار، کابل، غزني، ميدان وردګ، فراه ولايت او نورو ډېرو

برخـو کـې داسـې پرېکنـده ګوزارونـه وکړل، چې دکابل چارواکو په ګېون يـې دهغـوی دټولـو بانـدينيوملاترو حـواس ګډوډ کړل

راځئ وپلټو ولې لـه دومـره ملاتـړ برخمن ناکام او پـه ظـاهر لـه هـر ملاتـړ محروم بريمن دي ؟

په دې اړه به دوه مهم ټکي درته په ګوته کړم، او دمسلحو طالبانو دبري راز به افشاکړم :

لکه څنګه مې چې پورته يـاده کـړه په هيڅ صورت سـړی دمسـؤليت لـه ادا ځان نه شي خلاصولی، دغه راز هيڅ يـو دليل او مجوز هم چاته ددې مخه نه شي خلاصولی چې دحق لوری پرېـږدي اولـه باطل سره ودريـږي، دلتـه پـه دې خـاوره کې خو دهمدغو دوو لوريو جګـړه ده يـو حق اوبل باطل دی .

پـــه هيـــوادکې روان وضـــعيت، نـــاخوالو، ظلمونـــو، فســـاد، ناقانونيـــت، نادودو، پردي پـالنې او دطالبـانو داعيـې ته پـه کتـو طالبـان حـق لـوری ګرځـوي اومقابل يې چې دولـس اسـتازيتوب نـه کوي او په ټوله معنـا دامريکـادلاس آلـه اودهغـوی مولـود دی بـاطلوي اودباطـل حکم پرې کوي .

اوس کـه بيـاهم حـق اوباطـل هـم دربانـدې خلـط وي نـو دالله کتـاب تـه رجـوع وکـړئ اودالهـي لارښـوونو پـه رڼاکې دحق لوری ونيسئ، دهغه دکتاب پـه وړانـدې بشرـي تاويلونـه او پـردي نسبتونه پرېږدئ، دهوښياری او ايمان لـه دومـره لـويې دعـوې سره دومـره ژر او آسانه مه غولېږئ !

همـدا سـتا دتـردد او ناکـامۍ مهـم عنصر اودطالبانو دبري راز دی .

# دسهارلمانځه نه وروسته خوب څنګه ده؟

دسـهارخوب دشريعـت لـه نظـره نـاروا دی ترهغـه پـوری چـی لـمر راخيـږی دفقهـی مشـهورکتاب (الهنديـه٣٧٦/٥)کښـې راغلـی دی چـی ځمکـه الله جـل جلالـه تـه لـه دريووشيانوڅخه شکايت کوی.

١-دزناکارانسان له غسل څخه. ٢-دناحقه وينی لـه تويېدوڅخه. ٣-دسـهارله خوبـه څخه.

اودارنګه په تحفة الاحوذي شرح دترمذي کښې کی راغلی دی چی سهاروختی درزق په طلب کښی ووځی ځکه په سهارکښی برکت اوکامیابی ده. اوپه بـل روايت کښـی راغلـی چی دسهارخوب رزق منع کوی. اوپه روايت کښی راغلی دی چی بی بی فاطمه رضی الله عنها دسهارلمونځ وکړ ويده وه نبی صلی الله عليه وسلم تيريدلودايی په پښه ووهـل اوبيـايی و فرمايل چی ای لورکی ولاړه شه دخپل رب رزق ته حاضره شه اوله غافلينوڅخه مه کيـږه ځکه چی الله جل جلاله دسپيدوڅخه ترلمرختوپوری دخلګورزقونه تقسيموی.اوپه بل حـديث کښی راغلی دی چی نبی عليه الصلوة والسلام منع کړی ده دخوب څخه ترلمرختومخکی . (الهنديــه٣٧٦/٥) ويقوم من مقامه قبل الصبح فإن الأرض تشتكي إلى الله من غسل الزاني ودم حرام يسفك عليها ونومة بعد الصبح ويستيقظ ذاكرا لله تعالى وعازما على التقوى عـما حرم الله تعالى عليه وناويا أن لا يظلم أحدا من عباد الله كذا في الغرائب.( (تحفة الاحـوذي ٣٣٩/٤) وروي عن عائشة رضي الله عنها قالت قال رسول الله صلى الله عليه وسلم باكــروا للغدو في طلب الرزق فإن الغدو بركة ونجاح

رواه البزار والطبراني في الأوسط وروي عن عثمان رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم نوم الصبحة يمنع الرزق رواه أحمد والبيهقي وغيرهما

وأوردهما بن عدي في الكامل وهو ظاهر النكارة وروي عن فاطمة بنت محمد ورضي الله عنها قالت مر بي رسول الله صلى الله عليه وسلم وأنا مضطجعة متصبحة فحركني برجله ثم قال يا بنية قومي اشهدي رزق ربك ولا تكوني من الغافلين فإن الله يقسم أرزاق الناس ما بين طلوع الفجر إلى طلوع الشمس

رواه البيهقي ورواه أيضا عن علي قال دخل رسول الله صلى الله عليه وسلم على فاطمة بعد أن صلى الصبح وهي نائمة فذكره بمعناه

وروى ابن ماجه من حديث علي قال نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن النوم قبل طلوع الشمس انتهى ما في الترغيب

## هشدار




❖ پیامبر صلی الله علیه و سلم میفرماید: تا وقتی با حکام تان نجنگید که در آنها کفر بواح را مشاهده نکرده باشید!

❖ کفر بواح یعنی کفر واضح و آشکار!

❖ آیا بزرگ تر از این کفر بواح را دیده میتوانید که قانون الله متعال یعنی قرآن در محاکم معطل قرار داده شود بلکه در مقابل با قانون اساسی کفری و قوانین دیگر بشری فیصله ها صورت گیرد؟!

❖ آیا بزرگ تر از این کفر بواح را دیده میتوانید که پایگاه های نظامی آمریکای کافر در همه ولایات کشور ما قرار داشته باشد، و اکثر مسلمانان را زندانی نموده و بر آنها تجاوز نمایند و حتی زنان مسلمان را در چنین پایگاه ها بی عفت نمایند؟ !

❖ آیا بزرگتر از این کفر بواح دیده میتوانید که در همه کشور عوض اسلام و شریعت، دیموکراسی کفری تطبیق و تنفیذ گردد؟!

❖ آیا بزرگتر از این کفر بواح را دیده میتوانید که توهین آشکار بر مقدسات و حتی بر قرآن کریم در سرزمین ما صورت گیرد؟!

❖ آیا بزرگتر از این کفر بواح را دیده میتوانید که دوستی نظام و سردمداران و پیروان آن با دشمنان الله متعال بوده باشد؟!

❖ بناء با وجود این چنین دلایل واضح و روشن منتظر چی هستید تا شما و دین شما را نجات دهد؟ !

پس کسانی که دعوای اسلامی بودن نظام جانکیری را دارند و درین نظام فرسوده آمریکایی خدمت میکنند باید بدانند که دارند در نظام کفری دست و پا میزنند که با موجود بودن چنین دلایل هرگز جهل آنان عذر پنداشته نمیشود !!!

تا چوقت خود را به غفلت میزنید؟!

جهاد و مبارزه یگانه راه حل!

## #آمریکا_چه_میخواهد؟

- امریکا میخواهد که ریش در روی مردان نباشد!
- چادر از سر زنان دور شود!
- قرآن در محاکم نافذ نباشد!
- زنان در خانه ننشینند، بلکه با تن و مو های برهنه در کوچه و بازار؛ دیانت و اخلاق اسلامی جوانان را شکار کنند!
- جوانان مصروف درامه ها، فلم ها و بازی های شیطانی بوده باشند تا مسوولیت دینی خود را در قبال اشغالگران درک نکنند !
- دختران مصروف آرایش، مد، فیشن، عاشقی های شیطانی و پیروی و تقلید از فرهنگ غربیان وحشی صفت بوده باشند!
- مردان مصروف شهوت رانی و غریزه، جنسی و نفسی خود باشند !
- و ماموران، آمران، رئیسان، والی ها و وزیر های دولتی، به سبب چوکی، پول و قدرت همه در فرق یکدیگر بزنند !
- که در نتیجه همه اقشار جامعه زیر کنترول آمریکا و آمریکا پرستان قرار گیرند و به حیث برده ها و غلامان از آنها و دارایی های شان استفاده کنند !
- و اینک کج اندیشان را با خانواده و نزدیکان شان شما مشاهده می نمایید که چطور در دام نیرنگ ها و چل های این فرعونیان قرن گرفتار شده اند که قدم به قدم ازین شیطان صفتان تقلید و پیروی میکنند.



# خاص امریکایان دي - لنډه کیسه

■ خالد رعد

لمر د مخامخ غره له څوکې پنا کېدو ته نږدې و، دادو لالا د قبلې لور ته په کمکی دروازه راووت، په چپ لاس یې په سترګو سیوری جوړ کړ او په شاوخوا پولو پټو کې یې د مجلس په انډیوالانو پسې وکتل، له ځان سره وغومبد..... د ډارن اولاد خو یو هم نه ښکاري چې لږ سات مې ورسره تیر سوی وای.

درې شپې مخکې یې په کلي کې د سردار خان په کور د سپیشل فورس عسکرو لخوا چاپه وهل شوې وه، په بمبار یې نیمه کلا ورته ورانه کړې وه، میرمن، کمکی لور او وراره یې ورشهیدان کړي او درې زامن یې ترې وړي وو، له چاپې وروسته به کله-کله سپیشل فورس عسکر کلي ته راتلل، په کلي ویره خپره وه او ټول درې ورځې او شپې په کورونو ننوتلي وو، یوازې سپینږیري او سپني ساري به له سردار خان سره د غم شریکی او تسلي ورکولو لپاره د هغه کور ته ورتلل.

په دادو لالا دنیا تنګه شوې وه، د جنوب خوا لویې دروازې ته روان شو..... ته راځه که د جارګي د توت خواته څوک پیدا سو او مازدیګر مې ورسره لنډ سو، خو راباندې یو کال سو. شیبه وروسته یې له زړه د دیغت خپسه پورته شوه، لالی او پاچا یې ولیدل چې د جارګي په سر ناست وو. دوی دواړه هم له دیغته جارګي ته د مجلس په سړي پسې راغلي وو، چې ورځ پرې لنډه شي.

دادو لالا له سلام او روغبړ وروسته شنه نسوار له ژبې لاندې کینبودل او پاچا ته یې مخ کړ.

..... پاچا! په سردار خان به دې حال نه وي؟ خدای دې سوب وکړي له خپګانه به یې زړه چاودلی وي.

– ..... ورغلی وم، ما ویل لږ مجلس به ورسره وکم چې غم پرې سپک سي، بیچاره ډیر خپه و، د چاپې ټوله کیسه یې راته وکړه، بس الله (ج) دې غور وکړي.

– ..... یه وروره! د شکر ځای خو دا ده چې د کوپر زمنو (سپیشل فورس) بدنامي نه ده ور اړولي، دا خو امریکایانو تربیه کړي دي، په هیڅ ناروا نه دي ترلي. یو د زمنو کیسه یې سړی خپه کوي، دعا به ورته کوو چې خدای یې زر ورته راخلاس کي.

پاچا لږ په سیاست پوهیده، کله نا کله به یې په جومات کې د رادیوګانو د خبرونو غورچاڼ هم بیاناوه او لنډه تبصره به یې پرې کوله، دی لږ و ډیر په حالاتو خبر و. د دادو لالا خبرې ته یې د هو په ډول سر وخوځاوه او ویې ویل ..... ما خو لا دا هم له ډیرو خلکو واوریدل چې دغه یې د هغو پرچمیانو او کمونستانو زمن راټول کړي چې د امریکایانو خاص ملګري دي، ډیر اتیبار (اعتبار) پې لري، بیا یې خاص امریکایي جنرالان ورته مکرر (مقرر) کړي چې تربیه یې کي. دغه چاپې خو امریکایانو ورښودلې، په هغه شپه دې ورته پکر (فکر) و؟، بالکل لکه د امریکایانو چاپه.

– ..... هیڅ شک یې نسته، سردار خان د چاپې په سهار راته ویل چې بیخي پیژندل کیدل نه، چې پارسي او پښتو یې وویله بیا پوه سوم چې دا خو امریکایان نه دي، وایي داسې ظالمان و چې نه یې ښځې ته کتل نه سړي ته، بس ټول یې له لبه په کونداغو وهل،



وراره مې څه خبره ورته وکړه، بل توپک پې راواړاوه او دي ما کوروالا، لور مې او وراره مې شهیدان کړل.

پاچا خپل پټکی دیوال ته کیښود، سر یې پرې تکیه کړ ویې ویل: هو، له دې وجې یې خاص ځواکونه نوم پې ایښی، رادیوګانې یې ځانګړي ځواکونه بولي، په خاصو عملیاتو کې شرکت کوي، دوی وایي چې طالبان چیرته په نورو عسکرو زورور سي بیا دغه عسکر ورلیږي چې بیرته جی (ځای) ترې ونیسي او خلک په امن کړي.

– ..... خلک په امن کړي؟! اوس ښه سوه!!!، طالبان څوک دي وه پاچا ګله! خو دغه دي موږ زمن او ورونه دي، دوی اوس موږ له خپلو اولادو ساتي؟!. ای د بوش زمنو! نسته ځواني لاړه کني په هغه شپه خو مې ولا د دوی کوپر په لاس کې ورکړی وی. ساتل بیا دغسې وي، چي نه د چا په ناموس بند وي، نه مو قران و جومات پیژني او نه مو سپین ساري او سپینږیری پربږدي، بس له یوې مخې یې ولي. خاس امریکایان دي، په دوی دې بلا د افغان د نوم وګرځي.

لالي له دعا وروسته تسبیح تر ګوتو تاو کړې او ګریوان ته یې سر ښکته کړ، کفففففف شففف شففف، په دواړو لپو یې هم چفف کړل او لاسونه یې په تول ځان تیر کړل، بیا یې تسبیح جیب ته واچولې او له دادو لالا او پاچا سره یې په مجلس ځان ګډ کړ.

– ..... ماښام ده، لمځونه به د جارګي په سر وکو بیا به ځو، چي بیا په غم وانه وړو. د سردار خان شهیدانو ته لویي درجې غواړو او ځان ته به هم دوا کوو چې خدای تعالی له ایمان سره مرګ راکي. داسې وخت ده چې نه مو ناموس خوندي ده، نه دین، نه د خپل کور کلي واک لرو، جومات او لمونځ خو یې کړل رادربدره

او،،،، باچا په خبره کې وروليد، ..... ته ودرېږه د ټانګو درنه غورا مې تر غوږ کيږي، بيا دا د کوپر اولاد پياده نه وي راغلي، غږيدا به مو واوري په بلا به ورسره ککړ سو.

دريواړه ودريدل، پاچا لا پټکی په لاس کې نيولی و چې د سپيشل فورس ټانګ د کلا له برج سره راتاو شو، عسکرو د ټوپکونو شپيلی ورته سيخې کړې.

..... ودريږئ! عسکر له ټانګ نه ټوپ کړل او غږ يې پرې وکړ.

يو عسکر چې قوماندان ښکارېده، مخ ته يې ودريد او نورو شاوخوا منډه کړه.

– ..... بيا په کومه پوسته د حملې پلان جوړوئ او که مو چا ته غوږه ډوډۍ تياره کړې ده؟ انتظار خو دربانديې اوږد شوی.

دادو لالا ځواب ورکړ، ..... وه وروره! په دې سپينو ږيرو به ځنګه پوستې نيسو او ډوډۍ مو کله بيا چا ته ور..... پټکی يې له څپېړې سره د غوا پينو ته ولوېد.

– ..... په سپينه ږيره دروغ وايې، ابله ورځ مو په دې کلا کې ډوډۍ نه وه ورکړې؟ چې بيا مو يو په هغه بره کلا کې د شپې په چاپه کې وغځاوه او درې مو ژوندي ونيول.

د لالي لاړې نښتې وې، غاړه يې تازه کړه، ..... قوماندان سيب هغه خو يې ورار،،،،، د عسکر دروند غږ يې په ستوني کې خبره وچه کړه، ..... چوپ چې بله خبره دې له خولې ونه وځي. له دې سره يې دوه درې درانه سوکان په ولي او ټټر ولګيدل، ..... ځئ چې بيا مو ونه وينم ګني ديرش ډزه به مو وولم، دومره په داړه لهجه راته غږيږي لکه موږ يې چې نه په تودو کمبلو خبر يو او نه په غوږو ميلمستاوو.

دادو لالا د کلا د لمرلويدو طرف ته وړې دروازې ته ورتاو شو، د سترګو له کونجو يې عسکرو ته کتل او له ځان سره وغوميد، ..... دا اوس ځان مسلمان بولي، خاس امريكايان دي خاس، په دوی دې بلا د افغان د نوم او مسلماني وګرځي.



# غرب مخالف نماز، روزه و بندگی نیست!

(ب علی‌خیل )

زمانی که سیاست‌مداران غربی می‌گویند که آنان با اسلام دشمنی ندارند و به عنوان یک دین با آن مخالف نیستند؛ در گفته‌شان صادق هستند. زیرا برای آنان اهمیتی ندارد که ما نماز بخوانیم، روزه بگیریم، حج کنیم، شب و روز خود را به عبادت، تسبیح، دعا و ثنای الهی سپری کنیم و یا زندگی خود را با توکل بگذارنیم. آنان اهمیتی نمی‌دهند که اگر بخواهیم در مسجد اعتکاف کنیم، وحدانیت الله را بیان نماییم، عظمت‌اش را بگوییم و صفات‌اش را ذکر کنیم. غرب و اندیشهٔ غربی با عبادات، شعایر دین، پرهیزگاری در اسلام و ... دشمنی ندارند. برای آنان مهم نیست که آخرت همه از آن ما باشد، زیرا آخرت برای آنان مفهومی ندارد و هرگز به آن نمی‌اندیشند. حتا این امکان وجود دارد که آنان ما را به عبادت و اعتکاف در مساجد و خانقاه‌ها برای خلوت با خدا و راز و نیاز با او تشویق و ترغیب نمایند. درواقع غرب از چنین باورهای استقبال می‌کند و آنها را درخور ستایش برمی‌شمارد.

اما آنان با روی دیگر سکه اسلام کینه و دشمنی دارند. آنان از اسلامی که به دنبال دفاع از حقوق و ارزش‌های انسانی/اسلامی خود است، نفرت دارند. آنان از سیاست و رسالت اسلامی ترس و واهمه دارند. آنان از بیداری اسلامی نگران هستند. اسلامی که پا به پای عصر پیش برود و با آنان در میدان دنیا رقابت کند و تمدن ناب خود را پایه‌گذاری نماید و علم و دانش را وسعت بخشیده، اختراع و انکشاف و تکنالوژی را در دست بگیرد تا با وسعت دادن به دامنه حکومت خود نه برای اشغال و کشورگشایی و تجاوز که بر مبنای اهداف سازنده، هدایت و رهنمون انسان‌ها، اجرای عدالت در زمین الله و ... زنگ خطر آنان را به صدا درآورده است. غرب چشم دیدن اسلامی که از دایره اصلاح فرد به سوی اصلاح جامعه و تمدن و ایجاد تغییر و تحول در سطح دنیا، پیش برود را ندارد. و اینجاست که طاغوت غرب، بی‌طاقت شده با تمام قوا بر این اسلام می‌تازد تا مبادا عصر بعثت و دور خلافت، باری دیگر احیا شود.

علامه ابوالحسن ندوی رحمه‌الله، در بیان رسالت اسلام می‌نویسد: امت اسلام صاحب آخرین پیام دینی است. این پیام بر تمام مواضع و عملکردهای امت اسلام سیطره دارد. جایگاه آن نیز جایگاه رهبری، نظارت و ارشادگریِ جهان است. آیه ۱۱۰ سوره آل‌عمران می‌گوید: «شما بهترین امت بودید که برای مردم پدید آورده شده است. به کار نیک فرمان می‌دهید و از کار ناشایست باز می‌دارید و به خدا ایمان دارید«.

بنابراین روا نیست که امت در پشت کاروان و در کنار شاگردان و خدم و حشم باشد و در حاشیه دیگر ملت‌ها بزیّد و به جای رهبری، نظارت، امر و نهی و ابتکار و نوآوری، به دنباله‌روی، گوته‌برداری، فرمان‌برداری و تسلیم‌شدن دل خوش کند .

امت اسلام، امتی هدفمند و دارای غایتی روشن در زندگی و پیامی کامل در جهان است. تمدن، فرهنگ، پیکار، تولیدات و تمام امور مرتبط با کوشش‌ها و فعالیت‌ها، تحت فرمان اعتقادات، غایات و رسالت آن‌اند. (ندوی، الصرع؛ ص ۵۰۲) و این همان اسلامی است که در گذشته دور امپراطوری هایی چون ایران و روم را به زانو درآورد و امروز غربیان را از تکرار دوباره تاریخ به لرزه انداخته است.

# په افغانستان کې یوازې د اسلام له نامه او هویت څخه استفاده کېږي!

ژباړن: منصور دریځ

د غرب له خطرناکو او خبیثو نقشو څخه یوه هم په اسلامي خاورو کې له اشغال وروسته د ازادۍ د مفکورې خپرول دي؛ اشغال شوي هېوادونه ازاد نه، بلکې په فکري او ثقافتي توګه اشغالېږي. غربیان د دغو هېوادونو اوسېدونکي د نهضت، پرمختګ او ترقۍ تر نامه لاندې له پرمختللو ملتونو سره یوځای کوي او افکار، عادات او مفاهیم یې د اسلامي عقیدې پر خلاف بدلوي او ډله ډله یې له خپلې تګلارې څخه اړوي. تر څنګ یې دوی ته داسې وایي، چې ستاسو د ژوند د بد حالت یوازنی لامل اسلام دی، د دې تر څنګ د دغه بحث بنسټیز محور «ښځه» ده.

شرعي جامې چې په حقیقت کې د یوې مسلمانې ښځې اسلامي هویت دی، یو له هغو مهمو وسایلو څخه دي، چې په بهانه یې غربیان مسلمانې ښځې خوارې او ذلیلې ښيي او تر څنګ یې مسلمانو ښځو ته په ټولنه کې د دوی نه برخه اخیستل په ګوته کوي. په مقابل کې یې غربي نیمګړی هویت، چې له اسلامي تمدن څخه لرې دی، مسلمانو ښځو ته په ښه بڼه ښکاره کوي. غربي ښځې مسلمانو ښځو ته د کوترې په څېر ښيي، چې هر لوري ته وغواړي الوتلی شي او غربي رسنۍ مسلمانه حجاب لرونکې ښځه د اسلام او مسلمانانو لخوا د ظلم او وحشت نښه بولي او د اسلامي قانون د نقض او د دوی په ژوند کې د تشرعي منهج تر پښو لاندې کولو په موخه، حجاب بې ارزښته ښيي او له بل لوري اسلامي ارزښتونه د ښځې په پرمختګ کې تېروتنه او د دوی د ذلت رمز بولي. په پایله کې ویلی شو، چې د غربي رسنیو موخه له مسلمانو ښځو څخه د اسلامي ارزښتونو لرې کول دي.

په دې برخه کې افغانستان ښه مثال دی. غرب په نظامي برخه کې شوروي اتحاد ته له ماتې ورکولو وروسته، د افغانستان ازادول خپله موخه وګرځوله او د مسلمانو ښځو پر اسلامي هویت یې ور ودانګل. د مهمو څېزونو له ډلې یو هم حجاب و، چې امریکایي اشغال یې د له منځه وړلو لپاره له ټولو وسیلو استفاده وکړه. له بلې خوا د (CNN) او (BBC News) غونډې رسنیو هم د طالبانو له ماتې وروسته، له اسلامي حجاب څخه د افغانو ښځو ازادولو ته پام واړاوه.

په دې اړه له (CNN) څخه د بوش په رانقل شوو رادیویي خبرو کې، چې په افغانستان کې یې د ښځو ژوند ذلیل بللی و داسې ویلي: «د افغانستان ښځې تر هغې کچې په بد حالت کې دي، چې له ورو امکاناتو او خوشحالیو څخه هم بې برخې دي. دی زیاتوي: افغان مېرمنې وهل او ټکول کېږي په ځانګړې توګه کله، چې په لوړ اواز وخاندي، همدا راز دوی نشي کولی له کوره بهر کار وکړي او حتی یوازې له کوره بهر ووځي.»

خو امریکایي اشغال په افغانستان کې د زرګونو افغانو مسلمانو ښځو د درد، کړاو او تر داسې خېمو(چې د مرګ خېمو ته ورته دي) لاندې د ژمي یخ موسم پر تېرولو سربېره د لوږې او مرضونو تر څنګ، څه پرمختګ کړی دی!؟ دا ټولې هغه قضیې نه دي، چې د غربي رسنیو د پام وړ وګرځي، بلکې له دغو پېښو څخه په ډېرې چټکۍ سره تېرېږي.

په ځانګړې توګه په دې وروستیو کې د دې شاهدان وو، چې افغانو نجونو او ښځو په ټولنیزو شبکو کې د «نوم مې چېرې دی!؟» تر نامه لاندې کمپاین جوړ کړی و او هڅه یې کوله ترڅو د ښځو هویت او رول پیاوړی کړي. دغه موضوع په ټولنیزو شبکو کې داسې خپرېده، چې ګواکې خلک د خپلو ښځو پر نوم اخیستلو شرمېږي؛ ځکه افغان نارینه دا شرم ګڼي، چې ښځو ته یې د هغوی په نامه غږ وشي؛ له هغو ډلو څخه، چې دغه کمپاین یې پر مخ وړلو

یو شمېر یې «ځوانان د بدلون په لور» وو، چې په کابل کې د امریکا د سفارت تر سرپرستۍ لاندې وو.

که څه هم دغه سرسري تقلید او دود له دین سره هېڅ تړاو نه لري. خو رسول الله صلی الله علیه وسلم یې خپلو مېرمنو ته د دوی پر نومونو غږ کاوه، خو کاش، چې افغان مسلمانو ښځو دغه کمپاین د افغانې ښځې د اسلامي هویت د ساتلو لپاره کړی وی. د دغه کمپاین پیل باید د «زما نوم چېرې دی!؟» پر ځای دا ډول وی، چې «د یوې مسلمانې ښځې په توګه زما هویت چېرې دی!؟» یا لږ تر لږه «زما حجاب چېرې دی!؟».

د دغو نجونو او ښځو فعالیت په حقیقت کې د افغانو ښځو د اسلامي هویت له منځه وړل او د پرمختګ تر نامه لاندې د اسلامي ارزښتونو، افکارو او اعمالو پر وړاندې د دوی غربي کول وو.

دوی باید د هغو اسالیبو او مخالفو نظریو د بربنډولو هڅه وکړي، چې د ښځو په اړه دي او د دوی د سپکاوي لامل کېږي؛ چې د هغو لامل اسلامي احکام نه، بلکې له پردیو افکارو څخه ملاتړ او د هغه حقیقي اسلام نه تطبیق دی، چې ښځو ته یې عزت ورکړی و.

خو د غرب ملاتړي سازمانانونه او ډلې، لکه «ځوانان د بدلون په لور» چې په کابل کې د امریکا د سفارت تر سرپرستۍ لاندې کار کوي او شعار یې «د هغو ښځو حقوقو تر لاسه کول دي، چې خپل حقوق یې له لاسه ورکړي دي» کومې پایلې ته نه دي رسېدلي.

ځکه چې د دوی فعالیتونه د ښځو د غربي کولو، واک ته رسولو، له خپلې اصلي دندې څخه، چې د اولادونو روزنه یې ده، لرې کولو... او همدا راز پر ښځو د نورو فعالیتونو، لکه د مجلسونو او داسې لاریونونو، چې موخه یې د ښځو د غربي کولو بنسټ اېښوول دي؛ پر مخ بیولو لپاره د دوی پر ځواکمنتیا کار کول دي.

هو، د شرعي احکامو تر څنګ کار او تعلیم د ښځو له حقوقو څخه شمېرل کېږي، خو دا د دې لپاره نه دي چې ښځه دې د نر پر وړاندې استغنی ومومي یا له نر سره په سیالۍ کې ولوېږي یا دا چې د ښځې رول یوازې کار کول دي. د دغې موضوع په اړه له هغو کسانو څخه چې خپل غږ د انسان او ښځې د حقوقو لپاره اوچتوي، پوښتنه کېږي، چې ایا ستاسو غږ د شرعي احکامو مراعاتولو په اړه دی!؟ چېرې دي د ښځې حقوق چې هره ورځ په فلسطین، عراق، سوریه، میانمار او نورو اسلامي خاورو کې د ښځو ژوند،عزت او ابرو تر پښو لاندې او له منځه وړل کېږي!؟ غربي هېوادونه چې دېموکراسۍ ته دعوت کوي د مسلمانو ښځو او د دوی د اسلامي هویت پر وړاندې چې شرعي جامې یې دي جنګېږي او د «تروریزم» پر وړاندې د مبارزې تر نامه لاندې د ښځو حجاب لرې کوي، چېرې دي د مسلمانو ښځو ازادي او حقوق!؟

خو دا باید هېر نه کړو، چې په مسلمانو ښځو کې ډېر خیر نغښتی؛ په یوه اوږده څېړنه کې چې د «کریستیان ساینس مونیتور» خبروونکې پاڼې لخوا خپره شوې، ډېری افغان نجونې او ښځې پر دې ټینګار کوي، چې له طالبانو وروسته تر اوسه افغان مسلمانو ښځو خپل حجابونه نه دي لرې کړي او هغه څه چې غربي رسنۍ یې له حجابه د لرې کېدو تر نامه لاندې خپروي سم نه دي، ځکه د افغانستان خلک اسلامي احکام په اختیاري ډول د نر او ښځې تر منځ مراعاتوي او هېڅکله پر ښځو شرعي احکام لکه څنګه یې چې غربي رسنۍ منعکسوي د تورې په زور نه تطبیقېږي. د ښځو یوه مشاوره د افغان مېرمنو په چارو کې د غربیانو د پراخې مداخلې په اړه داسې وایي:«که ښځې په افغانستان کې ستونزمن ژوند لري نو دا یوازې د دوی حق دی چې د خپل حالت د بدلون لپاره کار وکړي نه ستاسو، ځکه موږ مسلمانان یو او داسې بدلون غواړو، چې زموږ له ثقافت سره همغږي ولري نه داسې بدلون چې د هغه پر خلاف وي.»

اې په ټوله نړۍ په ځانګړې توګه په افغانستان کې مسلمانو خویندو! د اسلامي فکر او احکامو له لارې پر خپل اسلامي هویت منګولې ولګوئ او کفري افکارو ته مه وردانګئ، د اسلام پر وړاندې د غرب له ویجاړوونکې جګړې څخه چې له تاسو استفاده کوي باخبره شئ؛ همدارنګه په هغه موقف کې چې یاست، د یوې مسلمانې ښځې په توګه پرې خبرې شئ، ځکه دغه موقف چې اسلام تاسو ته بښلی، ستاسو د سلامتیا کښتۍ ده، او له دې پرته به د دوزخ کندې ته لاړې شئ، هسې نه چې هغې ته لاړې شئ.



# د تصويري جهادي موادو

## د خپرولو اغېزې

حقمل ضيا

د اسلام دښمنان خپلو مقاصدو ته د رسېدو او اسلام ، مسلمانانو او مجاهدينو د بدنامولو لپاره په تبليغاتي جګړه کې اکثره په همدې تصويري وسايلو ترکيز کوي او له همدې وسايلو څخه د مخ په زياتېدونکي توګه استفاده کوي.

د اسلام مجاهدين هم له تصويري وسايلو څخه په استفاده خپل جهادي او رغنده فعاليتونه عکاسي کوي او له ترتيب او ډيزاين وروسته يې خپروي.

له تصويري موادو او وسايلو څخه د مجاهدينو استفاده ورځ تر بلې زياتېږي او مجاهدين اوس د جهاد له سنګرونو ور هاخوا له ملکي فعاليتونو او د خپل رغنده چارو ويډيوګانې هم خپلو مينه والو او نړيوالو ته وړاندې کوي ؛ او تر ډېره په دې تصويري فعاليتونو سره دا کوښښ کوي ، چې د دښمنانو او دښمن پلوه رسنيو هغه تبليغات پوچ او دروغ ثابت کړي چې دوی په مجاهدينو مختلف بې اساسه تورونه پورې کوي.

دښمنان او دښمنه پلوه رسنۍ د دې لپاره چې مجاهدين د ولس پروړاندې منفور او بد خلک معرفي کړي په مجاهدينو هره ورځ بې بنياده تورونه پورې کوي او وايي چې مجاهدين د تعليم او تربيې خلاف دي ، صحي مرکزونو ته د خپل حاکميت په سيمو کې د فعاليت اجازه نه ورکوي ، په سيمو کې د بيارغونې د چارو مخالفت کوي او د مجاهدينو د حاکميت په سيمو کې د خلکو ژوند خورا سخت او ترنګې معرفي کوي ؛ نو مجاهدين هم مجبوره دي چې د دښمنانو د همدې تبليغاتو د رد لپاره له تصويري او ويډيويي وسايلو استفاده وکړي او د دښمن دا تبليغات په داسې ډول باطله څرګند کړي چې انګار ترې نه نا ممکن وي.

که څه هم په اوسني وخت د دښمنانو اقتصادي ځواک ، پرمختللې ټکنالوژۍ او پراخې فکري جګړې ته په کتلو سره دا ناشونې ده چې د مجاهدينو تصويري فعاليتونه ورسره مقايسه شي خو بياهم د مجاهدينو کم او کمزوری فعاليت هم د دښمن د ډېرو پوچو تبليغات ځواب وايي ؛ او پر کتونکو خورا ستر تاثير پرېږدي.

### په ولس يې اغېزې

جهادي تصويري موادو په دې هم ډېر زيات مهم دي چې د مسلمان ولس د پوهولو او د هغوی په ذهن کې د دښمن د رسنيو له لوري د پيدا شوو شکونو د ځوابولو تر ټولو اسانه طريقه ده.

جهادي تصويري مواد د ولس پر هر غړي هغه لوستی وي او که نالوستی ، هغه مشر وي او که کشر يو شان اغېز کوي ، او کتونکی شخص په موضوع په اسانۍ سره پوهېدلی شي.

جهادي تصويري مواد پر مسلمان ولس او په ځانګړي توګه پر ځوانانو خاص تاثير لري ، او په هغوي کې له خپل دين نه د دفاع او له يرغلګرو کافرانو سره د جهاد ولوله تازه کوي او په عين حال کې په عصري ټکنالوژۍ باندې د سمبال دښمن د ټانګونو ، الوتکو ، بيسونو ، او مرکزونو ويجاړېدل او په هغوی د مجاهدينو تندريز ګوزارونه د ځوان نسل په ذهن او روان کې هغه موجوده وېره له منځه وړي چې د دښمن پرمختللې ټکنالوژۍ په سبب ورته پيدا شوې وي.



په افغانستان د امریکا په مشرۍ د کفري ټلوالې لـه برید وروسته د یرغلګرو او د هغـوی د تبلیغـاتي رسـنیو لـه لـوري د دې مسلمانې خـاورې د مجاهـدینو بچـو د روحیـاتو د ځپلـو لپـاره پـراخ تبلیغات وشول او دا ویل کېدل چې له امریکایـانو سره هـیڅ څـوک هم د مقابلې توان نه لري ، امریکایان په ځمکه کې دننـه د سـتن پـه اندازه کوچنۍ اوسپنه هم ګوري او هر هغه څوک چې د مقـابلې لاره ونیسي هغه به وژل کېږي.

خو چې کله مجاهدینو خپل بریدونه پیل کړل نو دا هـر څـه پوچ ثابت شول ، او د مجاهـدینو لـه لـوري د هغـوی ویـډیوګانو لـه نشرېدو وروسته چې امریکایي زغروال ټانګونه په کې د بمونـو پـه واسطه ټوټه ټوټه کېدل د امریکایانو هغه هیبت هم ختم شو چې پـه خلکو کې موجود وو.

په جهـادي تصـویري مـوادو کـې د مجاهـدینو د ژونـد او د جهاد په لاره کې په هغوی د تېرېدونکو تکلیفونو په لیدلو سره ولس د مجاهدینو په حقانیت قانع کېږي او دا ورته څرګندېږي چې د الهـي رضا پر ته د دنیوي مقاصدو لپاره هیڅ څوک هـم داسـې تکلیـف نـه ګالي او نه هم دا سې بې وسه او کمزوري خلک پر داسې ستر ظـالم قوت برى موندلى شي.

## په دښمن اغېزې

جهادي تصویري مواد د نورو تاثیراتو تر څنګ په دښمن هم څرګنده اغېزه لري.

په جهـادي تصـویري مـوادو کـې هغـو کسانو ته د دعوت مسایل موجود وي چې د کفارو په تبلیغاتو غولېدلي دي ، او د نـا چیـزو دنیـوي امتیـازاتو لپـاره د اسـلام ، مسلمانانو او مجاهدینو پر ضد جګـړه کـوي او په عین حال په یادو تصویري موادو کې د مجاهدینو خورا لوړ مورال ، کلک عزم او په دښمنانو ځپـونکي بریدونـه د دښـمن پـه لیکـو کـې جنګېـدونکو عسـکرو مـورال ماتوي.

## تاریخي ارزښت

که څه هم د تاریخ د خوندي کولو لپاره عموماً لـه کتـابونو او لیکنو څخه استفاده کېږي خو اوس له تصویري مـوادو څخـه پـه دې برخه کې استفاده مخ په زیاتېدو ده ؛ تصویري مواد کـولای شي چې تېر واقعات تر نورو ټولو شیانو په ښه شان سره خپـل کتـونکي ته واضح او څرګند کړي.

تصویري جهادي مواد راتلونکو نسلونو تـه د خپلـو اسـلافو او مشرانو مېړانه ، متانت ، د باطل پروړاندې د هغوی ټینګ دریـځ ، له مسلمانو ولسونو سره د کفارو ظلمونـه او تـاریخي دښـمني او پـه نهایت کې د حق غلبه او د باطل شکست هر څه په څرګنده توګـه ور ښیي او په هغوی کـې د اسـتقامت ، شـجاعت ، ازادی ، مبـارزې او مقابلې روح ژوندی کوي او پـه عـین حـال لـه همـدې مـوادو څخـه جګړیز تکتیکونه او لارې چارې هم زده کولای شي.

د تصویري موادو یوه تاریخي ښېګڼه دا هم ده چې د دروغ ویلو احتمال په کې کم دی ، ځکه هرڅه په مشاهده بانـدې دي ؛ او د حقیقت او تمثیل فرق په کې په اسانی سره کېدلی شي.

د جهادي تصویري موادو ، جهادي ستوډیو ګانې تـر بـل هـر چا زیات مسؤولیت لري ؛ تر څو خپل مواد راتلونکي ته په ښه شـان سره انتقال کړي ، د هغوی د خوندي توب لپاره مـنظم او ترتیـب واره ارشیف ولري او د هغو د ضایع کېدو او ورک کېدو مخه ونیسي.

# چرا ملت در قبال جنایات امریکایی ها خاموش است؟!

میوند فردوس

با اعلان ستراتیژی جدید ایالات متحده امریکا برای افغانستان؛ برده های فکری امریکا در افغانستان آنرا کلید حل همه مشکلات کشور می دانستند و برای توجیه کردن روکردن دوباره حکومت امریکا به سیاست ناکام جنگی در افغانستان کوشش های زیادی به خرج دادند و از هر ستیج و هر مایک بخاطر دفاع از آن سود بردند.

ولی آنچه در عمل دیدیم طی این چند ماهی که از اعلان ستراتیژی جنگی امریکا برای افغانستان می گذرد، اینست که این ستراتیژی جز ریختاندن خون افغانهای بی گناه و مظلوم هیچ دست آوردی نداشته است .

فقط در طول چند ماه اخیر بیش از صد تن از هموطنان ملکی ما قربانی جنایات جنگی امریکایی ها در گوشه و کنار کشور شدند .

امریکایی ها در حملات هوایی و عملیات کورکورانه شبانه خود جوی خون افغانهای بی دفاع را جاری ساختند، و حکومت دوسره ضد وحدت ملی حتی جرئت نکرد این جنایات وحشیانه امریکایی ها در قبال ملت مظلوم افغان را تقبیح نماید و در جلوگیری از آن چیزی بگوید.

دیدیم هر باری که این دشمنان درنده و خونخوار بشریت بر هموطنان بی گناه ما بم ریختند عده ای از ضمیر باختگان وابسته به جنایات غرب و در جامه هموطن کوشش کردند چنان وانمود سازند که این قربانیان افراد ملکی نه بلکه افراد مسلح مخالف دولت بوده اند.

ما از حکومتی که بنیان گذارش جان کری وزیر خارجه اسبق امریکاست، و برای حفظ کرسی خونین قدرت تن به ذلت ننگین خاموشی در قبال کشته شدن اتباع خویش داده است، هیچ گیله و شکایتی نداریم...

ما اگر گیله و گلایه و شکایت داریم از ملت و مردم ما هست!!!

آری هموطنم! تا کی باید شاهد کشته شدن برادر، خواهر، پدر و یا مادر این میهن باشی!!

تا چه زمانی در قبال این جنایات نابخشودنی و ضد بشری باید سکوت کرد؟!

چرا با بیرون ساختن همه نیروهای خارجی علل و انگیزه جنگ در کشور را از بین نمی برید؟!!

چرا از هموطن مظلوم خود که فقط قربانی خونخواری و درندگی نیروهای خارجی شده حمایت نمی کنید؟!

در تازه ترین مورد ساحات مسکونی تگاب مورد بمباردمان وحشیانه نیروهای صلیبی قرار گرفت و به خون غلطید، و تبدیل به گورستان مسلمانانی شد که جرمی جز مسلمان بودن نداشتند.

# وکیلان

## ولې توره دریشي اغوندي؟!

نن ورځ نړۍ ډېر پرمختګ کړی دی، ورځ تر بلې عادتونه بدلیږي را بدلیږي، مګر ځینې شیان هیڅ بدلون نه مومي، چې هغه هم د ډاکټرانو او وکیلانو لباس دی، د هر عادت تر شا یوه فلسفه پرته ده، چې د همغه ورځې نه وروسته بیا یو لباس یا بل څه عام رواج ګرځیدلی دی. کیدای شي ډېر لوستونکي د وکیلانو د تور لباس اغوستلو په راز باندې خبر نه وي، آن ځینې وکیلان چې خپله توره دریشي اغوندي تراوسه یې په رزا نه پوهیږي، چې په حقیقت کې د وکیل د تورې دریشۍ تر شا یوه کیسه پرته ده.

په ۱۷۹۱ م کال کې یو فرانسوی قاضي د خپل کور مخې ته د تفریح لپاره ناست وو، چې دوه کسان یې ولیدل خپلو کې سره لانجه شوه، یو له جیب نه چاقو راویست او خپل حریف یې وربandې وواهه او بیا وتښتید.

یو لاروی راغئ په ځمکه پروت سړی یې پداسې حال کې را جګ کړ چې وینې ترې روانې وې او شفاخانې ته یې یوړ ترڅو چې ژوند یې بچ شي، متأسفانه چې سړي آخري سلګۍ وکړې او شفاخانه کې مړ شو.

پولیس راغلل او لاروي ته یې زولنې ور واچولې چې ته قاتل یې، پداسې حال کې چې لاروي د انساني همدردۍ له وجې نه زخمي شوی کس شفاخانې ته راوړی وو، لنډه دا چې لاروی زندان ته ورسید او بیا یې محکمه دایره شوه.

جالبه خو دا وه چې همغه قاضي چې د دوه کسانو لانجه او لاروي یې په خپلو سترګو ولیدل د محکمې رئیس وټاکل شو، ترڅو چې د قتل قضیه باندې فیصله وکړي، که څه هم قاضي ټوله صحنه په خپلو سترګو لیدلې وه، چې لاروی بې ګناه دی، بله دا چې فرانسوي قانون هیڅکله بغیر د دلائلو څخه یو څوک بې ګناه نه ثابتوي، نو ځکه قاضي په پټو سترګو باندې فیصله وکړه، لاروي باندې یې د اعدام حکم صادر کړ او اعدام شو.

څو ورځې وروسته قاضي خپل ضمیر ملامت کړ چې په ناحقه مې لاروی اعدام کړ، بالآخره یې خلکو ته کیسه وکړه چې د جنګ صحنه ټوله ما څارله، مګر بیا مې هم حقیقت پټ کړ، خلکو د قاضي پر وړاندې غبرګون څرګند کړ چې قاضي په ناحقه لاروی اعدام کړ.

بله ورځ یوه بله جنائي قضیه محکمې ته راغله، همدغه قاضي بیا د محکمې رئیس وټاکل شو، د مجرم مدافع وکیل توره دریشي واغوسته او د قاضي مخې ته ودرید ترڅو چې د مجرم دفاع وکړي، قاضي پوښتنه ترې وکړه چې دا توره دریشي د ولې اغوستې ده؟

وکیل ځواب ورکړ د دې پخاطر مې توره دریشي اغوستې ده چې تا ته د هغه مخکینۍ قضیې ظلم در یاد کړم، چې په ناحقه سره د لاروی د قاتل پر ځای اعدام کړ، پداسې حال کې چې له قضیې ښه خبر وې، له دغه واقعې نه وروسته هر وکیل توره دریشي اغوسته چې بالآخره اوس په ټوله نړۍ کې رواج ده.



# مطبوعاتي لوبه او طالبـــان

سعد کټوازی

دعالیقدر رفقید امیر المؤمنین مشر ملا صاحب رَحِمَهُ اللهُ هره خبره څنګه چې ډیره وزني او له معنا ډکه، د کاڼي کرښه، لنډه خو تر ې لاندې اوږدې فلسفي پوښلې وې، هغه جمع(+) د هغه انفرادي، ټولنیزه، نظامي، سیاسي او ډیپلوماتیکه خو (په هره برخه کې) له تکلفاتو او رنګینیو خالي ساده تګلاره او په ډیرو پیچلو حالاتو کې د او سنۍ اسلامي نړۍ په مخ له تمي پورته، ځانګړې او بې ساري ښه حکومتولي او مشري په هغه رَحِمَهُ اللهُ باندې د لوی خدای جَلَّ جَلَالُهُ هغه پیرزوینې وې چې له ده رَحِمَهُ اللهُ وروسته هم د هر مشر او کشر مجاهد، د اسلامي حکومت چارواکو، ټولنیزو او سیاسي فعالانو د لارې مشال دي، مشر ملا صاحب رَحِمَهُ اللهُ دیوویشتمې پیړۍ په ډیر لږ وخت کې د حضرت عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عمر بن عبد العزیز رَحِمَهُ اللهُ دواړه خلافتونه او دیوه اسلامي خلافت دراوستلو او له هغه څخه د ننګې ټول اړخونه لارې او ګودرې یوځل بیا داسې مجسم انځور کړل او نه یوازې انځور بلکې دا یې هم عملاً وښوده چې له هغو څخه په تقلید او استنباط یو مسلمان حاکم د هر راز له توان او اټکل څو برابره لوړو پېښو او حالاتو په ښه شان مقابله کولای او پرې مسلمانه ټولنه د خپل پخواني تمدن په لور بیرته سوق کولای شي.

د طالبانو د اسلامي تحریک په نوم له لومړي خوځښت څخه د صلیبي تاړاک تر لومړنیو شپږو میاشتو مودې پورې د مشر ملا صاحب رَحِمَهُ اللهُ او طالبانو یې ډیر ترکیز په کار او عمل و، د بریا و تر لاسه کولو، سوبو تر سره کولو او داسې نورو په اړه یې په مطبوعاتو کې د اوازو خپرولو ډیره اړتیا نه لیدله یا یې ډیر پام نه ورته در لود بلکې چې ولس به د دوی په ورتللو او پر مختګ ډیر خوښیده د پوره باور په فضا کې په ګرمو ولولو به یې د هغو د فتحو غږ ور سره بدرګه کاوه او په یوه غږ به یې د نړۍ څلورکونجونه خبر کړل، نو طالبانو هم ډیر څه د دوی مشاهدې او پریکړې ته پرېښودل.

هو! د سیال لوري د تبلیغاتو په وړاندې او ځینې نورو اړتیاو لکه د اسلامي امارت داعیې او اعلامیې خپرولو، ولس ته د شرعي مسئلو ځوابولو او دیني حکمونو ښودلو، د ځیني لویو پیښو په اړه خبرور کولو او .. .لپاره د طالبانو د شریعت غږ رادیو او ځینې نوري مشهوري رسنۍ هم خپلواکي او ازادي وې. . .بس دغه ساده مطبوعات او څه چې وهر چاته مالوم او بس و.

د تاړاک د ځواک او سمبالښت تازه تود و خبرو په وړاندې د مشر ملا صاحب رَحِمَهُ اللهُ د خبري ((دوی به خپل کار کوي او موږ خپل)) هم یوه مانا په عمل باندې تر خبرو زیات ترکیز کیدای شي.

خو کله چې د تاړاک په لاس کې مطبوعاتي لوبه له تمې پورته دیوې داسې حربې په ښه خپلو لوسره راڅرګنده شوه چې د هغې په میدان کې بریالیتوب د جګړې د کټلو په

معنا شو، بل خوا په دې کې هم شک نه و چې دوه ښکيلې خواوې چې يو بل د مطبوعاتو په مټ څنګه راپرځوي په بل هيڅ ډول او حربه يې نشي راپرځولای او له درېيم لوري عامي رسنۍ هم د تاړاکګرو له خوا تمويل او د طالبانو په ضد وکارول شوې، هغه و چې مشر ملا صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ او طالبانو د وسلوالي مبارزي تر څنګ چې لا له اصله يې ورته ډېره پاملرنه درلوده مطبوعاتو ته هم پوره توجه او څومره چې په کار و اهميت ورکړ او له خپلو لږو شته امکاناتو څخه په ډېره ګټه يې د تاړاک دغه حربه په خپله ګټه تغير کړه چې اوس بيلابيلو رسمي او نارسمي ويب پاڼو، فسبوک پاڼو، ګردي ميزونو، تلويزوني چينلونو او نورو رسنيو ته په ګتو . . .بريښې چې طالبانو دا لوبه هم ګټلې او سيال لوري منلې وي.

په داراز اعترافونو سره هغه لږ ډېر ددې هڅه هم وکړه چې د طالبانو فکر بدل او د هغوی په غولولو سره د دوی په عمل ترکيز کم او د عمل ميدان چې د طالبانو د بريا له عمده رازونو څخه دی ټکنی کړي، ښه بيلګه يې د امريکا د پخواني ولسمشر اوباما د خپلې دندې وداعي فوځي غونډې ته دا خبره ((موږ په افغانستان کې طالبان مات نکړای شول)) ده، دا که څه هم د طالبانو په بريالیتوب اعتراف وه، خو موخه يې له نوي ولسمشره دا غوښتنه بريښيده چې . . .ته سرله اوسه هغوته ماتې ورکول په خپلو خرابو ماغزو کې ځای کړه... هغه وه چې ټرمپ هم ولسمشري ته د کمپاين او بيا د لوړې پورته کولو د مراسمو په مهال دا افغانستان د موضوع په تړاو چې د بيان ځای وه چپ پاتې شو، په دې معنا چې يا خپل ولس او د کابل د ګډ حکومت مشرانو ته له افغانستانه د خپلو پوځيانو د ايستلو يا د پوځي شتون له ډاډ ورکولو سره پري لوړه هم پورته کړي بلکې دا ټول يې منزوي پريښودل چې دا يې لا د هغه وخت د وارخطايې نښه وه، له هيښونکې اوږدې چوپتيا وروسته يې د نوې ستراتيژۍ په نوم...

خو طالبانو د مشر ملا صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ څخه په تقليد او د هغه له تګلاري په استنباط مسلح او مطبوعاتي مبارزه او بريا وي يوازې د خپلو مشخصو اهدافو د لاسته راوړلو وسيله وبلل بيا يې هم ټول ترکيز په مطبوعاتو کې د واقعيتونو په حقيقي بڼه او ښه شان انځورولو، عمل او خپلو اهدافو ته د رسيدلو په نويو لاروچارو لټولو و.

دا هم له چا پټه نه ده چې په هره برخه کې د طالبانو امکانات د خپل سيال اړخ په پرتله ډېر کم او د نشت برابر دي؛ نو که بيا هم امريکائي ځواکونه د طالبانو له ميزائلو د خپل دفاع وزير په سترې ساه تر ارګه روغ رسول او هلته پري د وارخطايې يوه اوږده ساه اخستل خپله لاسته راوړنه بولي نو د وخت له نزاکتونو سره سره په مطبوعاتي لوبه کې د طالب لوبډلي له دې په مراتبو لوړو بريا او لاسته راوړنو ولي اعتراف ونکړي!

نو ټول ترکيز...په دې معنا نه چې طالبان د خپل سيال جهت دغو اعترافونو، يوا و بل حالت ته اوښتون او په زړو سوليدلو حربو د نوي نوم ښودلو ته پاملرنه نکوي يا پکې خپله ګټه نه ويني بلکې ارزوي يې او ښه يې هم ګڼي چې پخپل وخت يې لا د ځان په ګټه او د هغه په زيان تغير کړي.

د نوې ستراتيژۍ په نوم د زور، قتل عام او اسلام د ښمني د پراخوالي (چې ورسره بمبارونه او شپنۍ چاپې ځمکنی حقيقت دی) په وړاندې به طالبان د جګړې د نويو تاکتيکونو خپلولو تر څنګ مطبوعاتي فعاليت ته د زور ورکولو او د هغه د لا ښه والي په پار مسلکي پرسونل او لوړ کدرونه ځانته جذب او بيالاس په کار کړي او اميد ده چې که د مشر ملا صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ د تګلاري په پوره تعقيب د دوی ترکيز د واقعيتونو په ښه ډول انځورولو او عمل وي، همداسي به د عمل ابتکار هم ترلاسه کړي.

ان شاء الله.

# ته نوڅه وخت راویښیږي؟



لیکوال شریف شهید

قرانکریم یې درته په باګرام کې ښکاره په اور ونه سوځوی؟

په ګوانتاموکې درته په تشنابونو کې ونه غورځوی؟

نه نه ته نوکله په دي راویښیږي ځکه پرقرانکریم خوتا کوم تکلیف پر ځان نه دی تیرکړی بلکې بلال حبشي رض دهمدې قرانکریم په خاطر پر ګرمو ډبرو په لوڅ بدن پریستل کیده

تانو کله دقرانکریم لپاره یوه لږ خواري کړي بلکې دهمدي قرانکریم لپاره خوږماجانان حضرت محمدصلی الله علیه وسلم مبارک غاښ قربان کړی ددي لپاره خو صحابه کرامو سرونه قربان کړي دي ددي لپاره خو صحابه کرامو خپل ورونه قریبان کورونه پریښودل تاته خو دهغوی دقربانی په اساس روغ رمټ رارسیدلی دی اوس ته فکر کوي چې قرانکریم ترماپوري په اسانی سره رارسیدلی په دې نو ته کله خبر یې چې ددي قرانکریم په خاطر میلیونونو انسانانو ککری قربان کړي اوتاته یې راورسوی

ستادپیغمبر سپکاوی یې ونه کړی؟

نه نه په هغه خو هم ستا ضمیر نه راویښیږي ځکه ته نوڅه خبر یې چې هغه پیغمبر د ځنکندن په سختی کې هم دامتي امتي ناري وهلې اود ژوند په سخت حالت کې یې ته نه یې هیر کړی اود قیامت په سخته ورځ به خپل ځان تري هیر وي اوستا غم به نیولی وي اوستادشفاعت لپاره به الله ته سوال زاری کوي ته نو کله دپیغمبر د مینې خبر یې هغه پیغمبر چې صحابه کرامو تري مور پلار ځانونه قربانول

اوهغه پیغمبر چې دهغه له برکته الله جل جلاله تاته تر نورو امتونو فضلیت درکړی

مسلمانان یې شهیدان نه کړل مسلماني ښځې یې په زندانونو کې اسیراني نه کړلي؟

نه نه داخوستا ضمیر هیڅکله نه راویښوي ځکه ته خو په دي ایت پوره عقیده نه لري چې مسلمانان سره ورونه دي

ځکه تاته فقط دخپل مور اولاد ورونه اوخویندي ښکاري که دي رښتیا په ایت شریف عقیده وای نو ضمیر به دي راویښ شوی وای ځکه چې که یې ستا دمور اوپلار لور زندان ته اچولی وای اوستا دمور اوپلار زوی وژلی وای په خدای قسم بیابه دي لږ عکس العمل ښودلی وای خوداچې ته په ایت عقیده نه لري نوځکه فقط په خوله وایې چې هرمسلمان مي ورور دی نور یې په کیسه کې نه یې

ستا وطن یې بمبار نه کړی؟

وطن خو تش په خوله مور ده اود وطن سره مینه ده

ای زه دي ښه پیژنم ته د روپو مین یې هغه روپی چې هیڅ نه په مړیږي اوهمداسي لالهانده به دمرګ ترساعته پسي سرګردانه یې دهمدي لپاره دروغ وایې غلابه کوي خواري



به کاږي خو یوه ورځ به ناخبره هرڅه درڅخه پاتي وي اوته به لحد ته تري روان یې اوهغه وخت به په موږ شي چې خوله دي دلحد دخاورو ډکه شي

ای مسلمانه زه درته پیغور درکوم بیاهم درته پیغور درکوم کافر راروان وي مرگ په ځان مني کور پریږدي وطن پریږدي اودلته ستاسره جنگیږي خوته لا دگیډي غم اخیستی یې

ته اوخدای دخپل دسلفو تاریخ مطالعه کړه مسلمان نو دومره بیغیرته وي؟

ښه پیغور پریږده داسي د یوگړي لپاره داحقیقي فرض کړه

دقیامت ورځ شول خالدبن ولیدرض په مخ درغلی چې درته ووایې چې ماددي قرانکریم او اسلام لپاره دوه ایازخمونه په بدن وخوړل اوته هم مسلمان یې داسلام دعوه کوي تا دخپل قران لپاره څه وکړل ؟

نوته به ورته څه جواب ورکړي؟

حضرت حمزه رض په مخه درشي اودرته ووایي چې ددي قرانکریم په خاطر کفارو زمادجسد څخه زما زړه وکاږه ستا په وخت کې چې دقرانکریم بي عزتي کیدل تا څه وکړل؟

اخ که سرور کاینات په مخه درشي اودرته ووایې چې داسلام په خاطر د طایف خلگو زه په ډبرو وویشتلم کفارو له وطن څخه هجرت ته مجبوره کړم ته خو زما امتي ځان بولي تاددي اسلام لپاره څه وکړل ؟

کفارو چې زما بي عزتي ستا په دور کې کول تا څه جواب ورکړی ته اوخدای په کوم ضمیر به د سرور کاینات څخه دشفاعت غوښتنه کوي په کوم ضمیر به ورسره مخ کیږي ؟

په کوم ضمیر به دصحابه کرامو سره جنت کې یوځای اوسیدل غواړي؟

ای د افغانیو ډالرو کالدارو ریالونو اویورو عاشقه لږ شرم وکړه دکفارو ښځي جسم فروشي کوي دزناء څخه پیسي لاس ته راوړي خوبیاهم خپل عسکر ته دټکس په نوم پیسي- ورکوي اوهغه دجنگ لپاره سپورټوي اودلته یې تاپسي رالیږي خوته کله د هغوی څخه شرمیږی اویادي ضمیر راویښیږي چې دهغوی له ضده یومجاهد سپورت کړي چې هغه ته داسلحي لپاره پیسي- ورکړي یاد یومجاهد دکورنی مصرف په غاړه واخلي یاد یو شهید بچی موږ کړي یاد یو زخمي تداوي وکړي یاد یو بندي مصرف په غاړه واخلي

خیر دی اوس لاوخت لري دازماخبري دي نه راویښوي په ورځ دحساب به معلومات درته وشي

چې د قران اوپیعمبر بي عزتي راویښ نه کړي چې دمسلمان قتل راویښ نه کړي چې دیوي مظلومي بندي خور کړیکو دي احساسات نه راوپارول ته نو کله راویښیږي؟

ته هیڅکله نه راویښیږي ځکه پرتا شیطان دغفلت درنده کمپله اچولي ده او دنیا عزت قدرت په عشق کې ډوب کړی یې ...

یادونه: افغان غږ کې نشریدونکې هره سیاسي لیکنه د لیکوال شخصي- نظر څرگندوي د اداري توافق ورسره شرط نه دی ....

# دجهاد په هکله

# ديني معلومات

مفتي محمدګل سعيد

بسم الله الرحمن الرحيم

(۱)ـــــ لومړنی شخص چې داعلاء کلمة الله لپاره په آس سپورشوی اوجهادېې کړی دی،متوشلخ دادريس عليه السلام زوی ؤ.(سبائک الذهب فی معرفة قبائل العرب ص۱۰)

(۲)ـــــ لومړنی شخص چې منجنيق يې جوړکړدکردقبيلې هيزن نومې شخص ؤ،ويل کيږي چې ابراهيم عليه السلام په کوم منجنيق کې اورته واچولی شوهغه هم ده جوړکړی ؤ،چې بيادالله تعالی په قهراخته شواوپه ځمکه کې غرق شو. ابن قتيبه رحمه الله وايي:لومړنی سړی چې منجنيق يې جوړکړی دی جزيمة الابرش ؤ،چې په جزيمة بن مالک الابرش هم شهرت لري،ابرش يې صفت دی دپلارنوم يې نه دی.علامه سيوطي رحمه الله فرمايلي دي: منجنيق په لومړي ځل بلقيس جوړکړ،چې بياجزيمه هم ورته اقدام وکړاوهغه هم جوړکړ. (تاريخ ابن کثيرص۲۰۸ ج ۱)

(۳)ـــــ اولنی غزوه چې مسلمانانوپکې منجنيق استعمال کړی دی،دطايف غزوه وه،چې دهجرت داتم کال په شوال مياشت کې رامنځته شوې ده.(نبی رحمت ص۳۵۴)

(۴)ـــــ لومړنی سړی چې دجنګ لپاره يې خندق وکيندی ،دفارس بادشاه ؤچې منوچهرنوميده ،او دموسی عليه السلام معاصرؤ.

(۵)ـ لومړنی شخص چې ښارونه يې فتح کړل،عبدالشمس بن يشجب نوميده، چې ملقب په سباؤ.(سويدي ص۱۷)

(۶)ـــــ اولنی لښکرچې دابوبکرصديق رضی الله عنه په خلافت کې مسلح شواودجنګ اراده يې وکړه داسامه بن زيدرضی الله عنه لښکرؤ.(مزيلة الدراية لمقدمة الهداية ص۵)

(۷)ـــــ لومړنی غزاچې رسول الله صلی الله عليه وسلم کړې ده،دابوا(ودان)غزاوه چې دهجرت نه اتلس مياشتې وروسته رامنځته شوه،اوپه دې غزاکې بيرغ دحضرت حمزه رضی الله عنه په لاس کې وو.(المواهب اللدنيه ص ۳۳۸ ج ۱)

(۸)ـــــ داحدپه غزاکې چې درسول الله صلی الله عليه وسلم دشهادت اوازپه دروغوباندې خپورشو،لومړنی کس چې رسول الله عليه السلام له هغه نه وروسته وليده،حضرت کعب بن مالک ؤچې بيايې صحابه کراموته هم دااعلان وکړ.(طبراني ص۱۴۹)

(۹)ـــــ لومړنی کلاچې مسلمانانومحاصره کړه دخيبردکلاګانويوه کلاوه چې ناعم نوميده.

(۱۰)ـــــ لومړنی زنانه چې داسلام دمبارک دين په لاره کې په شهادت ورسيده،حضرت سميه بنت خباط دحضرت عماربن ياسرموربی بی وه.اولومړنی سړی چې داسلام په پاکه لاره کې په شهادت ورسيدحارث بن خالدنوميده.(الاصابة ص۳۳۴ج ۴شماره ۵۸۵)

(۱۱)ـــــ داسلام لومړنی لښکرپه شپږم هجري کال دحضرت زيدبن حارثه په مشرۍ دروم خاورې ته ورسيد.

(۱۲)ـــــ دحضرت عثمان رضی الله عنه په زمانه کې لومړنی غزاچې دسمندرله لارې شوه دجزيره قبرس غزاوه چې دجنګ قيادت دحضرت امير معاويه رضی الله عنه په لاس کې

و.داجنګ دمعرکة ذات الصوری په نوم شهرت لري.(مسابقات وثقافات ص ۹۴،۹۵)

(۱۳)ــــ لومړنی مشرک چې دمسلمانانولخواووژل شو،عمروبن الحضرمی ؤچې حضرت عبدالله سهمي پخپل غشي وواژه.

(۱۴)ــــ لومړنی مسلمان چې دالله تعالی په لاره کې یې توره راواخیسته،اوهجادیې وکړ،حضرت زبیربن عوام رضی الله عنه ؤ،چې دعشره مبشره له ډلې څخه دی.(اسماء الرجال مشکوة ص ۵۹۵وطبرانی ص۱۴۳)

(۱۵)ــــ په عربوکې لومړنی سړی چې په غشي یې ویشتل کړیدي ،حضرت سعدبن ابی وقاص رضی الله عنه ؤ.(مسابقات وثقافات ص ۸۰ــ ۸۱)

(۱۶)ــــ دایران دخاورې اولنی شخص چې په پیغمبرصلی الله علیه وسلم یې ایمان راوړ،حضرت سلمان فارسي رضی الله عنه ؤ.

(۱۷)ـ دیهودولومړنی قبیله چې له مسلمانانو سره یې عهدشکني وکړه،اوپه بدر او احدکې وجنګیدل ،دبنوقینقاع قبیله وه.

(۱۸)ــــ دانصارولومړنی شهید حضرت حارثه بن سراقه انصاري وو،چې په بدرکې په شهادت ورسید.(اسماء الرجال مشکوة ص ۵۹۱)

(۱۹)ــــ لومړنی غزاچې حضرت خالدبن ولیدداسلام راوړلونه وروسته په کې برخه واخیسته ،دموته غزاوه،چې په همدې غزاکې درسول الله صلی الله علیه وسلم لخوادسیف الله لقب ورکړل شو.(فقه السیرة النبویه ص ۳۸۵)

(۲۰)ـ لومړنی شخص چې له مدینې منورې څخه مکې مکرمې ته راغی، حضرت اسعدبن زراره دسعدبن زراره وروړؤ.

(۲۱)ــــ لومړنی کس چې دقسطنطینې دروازه یې په توره ووهله اوماته یې کړه،عبدالله بن کلیب ؤ.(المعارف ص ۲۴۲)

(۲۲)ــــ لومړنی شخص چې دبدرپه غزاکې په شهادت ورسید، مهجع نومیده ،چې دحضرت عمررضی الله عنه غلام ؤ.اودانصارو لومړنی سړی چې په بدرکې په شهادت ورسیدحضرت حارثه بن النعمان ؤ.(طبراني ص۱۵۵)

(۲۳)ــــ هغه غزاچې حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په کې لوی بیرغونه (عربی کې ورته رایات وایي )له ځان سره راوړي ؤ،دحنین غزاوه،له دې نه مخکې به یې واړه بیرغونه (عربي کې ورته لواء وایي)له ځان سره دجهادډګرته وړل .(سیوطي ص ٦۳)

(۲۴)ــــ لومړنی شخص چې دالله تعالی په لاره کې یې خپله وینه تویی کړه، حضرت سعدبن ابی وقاص ؤ. (سیوطي ص ٦۰ بحواله اوایل ابی هلال عسکري )

(۲۵)ــــ لومړنی شخص چې داحدپه غزاکې په شهادت ورسید،عبدالله دحضرت جابررضی الله عنهما پلارؤ. (سیوطي ص٦۲)

(۲٦)ــــ لومړنی غزاچې مسلمانان په کې په کامله توګه کامیابه شول اوزیات شمیرمشرکین په کې قتل شول اوداسلام شان وشوکت ورسره لوړشو، دبدر غزاوه.(اوایل ابی هلال عسکري ص۸۵).

(۲۷)ــــ لومړنی آیت چې دجهادپه هکله نازل شوی دی،داقول درب العالمین دی:أذن للذین یقاتلون بأنهم ظلمواوان الله علی نصرهم لقدیر[حج ۳۹] (طبراني ص ۱۴۴شماره ۱۰٦۱)

(۲۸) لومړنی شخص چې په غزواتو کې یې کتاب ولیکه حضرت عروه بن الزبیرؤ. (سیوطي بحواله امام ذهبي ) په طبقات ابن سعدکې دي ،چې لومړنی شخص چې درسول الله ﷺ مغازي یې راټول کړیدي ،محمدابن اسحاق دی.

(۲۹)ــــ لومړنی کس چې په مکه مکرمه کې یې داسلام دین په ډاګه کړ،حضرت بلال رضی الله عنه ؤ.(اسماء الرجال مشکوة ص۵۸۷)

(۳۰)ــــ لومړنی بادشاه چې په سمرقندکې دخپل زوی له لاسه په شهادت ورسید،میرزا الغ بیګ بن شارخ بن امیرتیمورؤ،چې دخپل زوی عبد الطیف لخواشهیدکړای شو. (تاریخ غبار ص ۲٦۸،کشکول سلیمي ص ۲۳٦)

(۳۱)ــــ لومړنی پیغله چې په افغانستان دانګریزانو دیرغل په وخت یې دجنګ ډګرته راودانګل ،دکندهار دمیوند ملاله بي بي وه. (تاریخ غبارص ٦۳۸)

(۳۲)ــــ په مهاجرینوکې لومړنی شخص چې مدینې منورې ته یې هجرت وکړ،حضرت مصعب بن عمیرؤ.(طبرانی

ص۱۴۳)علامه سیوطی فرمایي چې ابوسلمة بن عبدالاسدؤ.

(۳۳)ـــ لومړنی شخص چې حبشې ته یې له ټولونه مخکې په دوهم ځل هجرت وکړ،خالدبن سعیدبن العاص ؤ.(سیوطی ص۸۳.)

(۳۴)ـ لومړنۍ ښځه چې مدینې منورې ته یې هجرت وکړ،دحضرت عامربن ربیعه میرمن لیلی بنت ابی حشمه وه.(تاریخ ابن کثیر ص ۱۹۵ج۳،سیرت ابن هشام ص ۸۲ ج ۲)

## دسپنتا دچاپ شوي کتاب عجایب اوغرایب

(یوه ورځ مارشال فهیم په غوصه راننوت او د کرزي مېز ته یې سوکان ونیول. ویل لس وارې مې درته ویلي چې زما په کارونو یعنې امنیتي ادارو کې به گوتې نه وهې او که بیا دې کوم جنرال بدل کړی و بیا گیله ونکړې. کرزی صاحب ورپورته شو او لکه څوک چې ماشوم دلاسه کوي ورته یې وویل: مارشال صاحب، هغه ستا جنرال مې لرې کړی ندی، بل ولایت ته مې ولېږلو. هلته تر دې ځایه هم ښه پیدا او پناه لري. او ته پېشنهاد ولیکه چې نور څو کسه درته مقرر کړم؟ دې سره د مارشال غوصه لږه سړه شوه. ویل زما سکرتر به درته نومونه واستوي امضا یې کړه. بل دا چې سالنگي او سیدخېلي ته د سترجنرالۍ رتبې ورکړه. کرزي په مسکا او همدې ټکو وویل: به چشم مارشال صاحب، بیغم باش! برو حالا قرار در خانه استراحت کو.

کله چې مارشال لاړ نو ما کرزي ته وویل چې دا خو ښخي زیاتی کوي او ته هیڅ نه ورته وایې. کرزي د منځ گوته خولې ته ونیوه ویل ایششش! زما چل یې هم ندی لیدلی، ده چې کله هم د لسو کسانو لست رالېږلی زه یې پنځه ردوم او پنځه منم. بیا چې غوصه شي نو وایم بین‌المللي دوستان ورسره مشکل لري. او بیا یې اواز بېرته لوړ کړ او خبرې ته یې پدې ډول دوام ورکړ: او بیا مارشال صیب د شکر ناروغي لري فشار یې لوړېږي. لحاظ یې باید وشي.

**د جعلي ملامنصور اصلي قیصه** : کله چې د طالبانو په استازیتوب له کوټې نه یو کس کندهار ته راغی او ویل کېده چې دا کس د طالبانو با صلاحیته استازی دی، نو کرزي صاحب زه په منډه ور وغوښتم، سخت خوشاله و، ویل یې سپنتا هغه د ستنې سپم مې پیدا کړ اوس به که خیر وي طالبان سوله کوي او ټوله امریکا یې هم مخه نشي نیولی او له دې سپمه به افغانستان روغ باسم. ما چې خبرې ته ځان جوړولو د مېز په سر یې سندونه گوره اېښې وه چې د ننگرهار کامې نه ورته عطا الله لودین رالېږلې وه ویل، په دې خوشالی دا وخوره. ما گوره واخیسته ورته مې وویل زه باید د ملي امنیت د مشاور په توگه د دغه را روان شخص هویت معلوم کړم، ویل، ته افغانستان کې بلد نه یې هغه ورځې هم د گردیز په ځای غزنې ته تللی وې، دا زموږ د قبیلې مسئله ده موږ پوهېږو ته یوازې ترتیبات ونیسه.

بس ما هم د میلمه لپاره کندهار ته الوتکه ولېږله او دلته مو سړی سرینا هوټل ته راوست او ځانگړې کوټه مو ورته ونیوله، د امنیت شورا اپراتیفي کارمندانو ورته امنیتي کمرې لگولې وې، چې وگورو سړی کوټه کې څه کوي ځکه سبا کرزي سره گورې هسې نه جنجال جوړ نه کړي. امنیتي کمرو کې مې نیم ساعت سړی وڅاره خو هغه بس کوټې ته له ننوتو سره نه تلویزیون روښانه کړ نه کوم بل شی بس په لمانځه ودرید او پرله پسې لمونځونه یې شروع کړل، اخر موږ ستړي شو او د څارنې نه مو لاس واخیست.

سبا مو د تشریفاتو مخصوصو موټرو کې ارگ ته قاچاقي راوست چې څوک یې ونه ویني، سیلور بوټان یې په پښو و، شاته یې پوندې هم چیتې کړې وې، کره لونگی یې په سر او زوړ واسکټ یې اچولی و، زه شکي وم خو بیا به راته کارمندانو ویل طالبان همدغه شي وي، کرزي سره یې دوه په دوه کوټه کې وکتل چې راووتلو کرزي کریم خرم ته غږ کړ، خرم صاحب حاجي ملا صاحب ښه ونازه هو ښه یې ونازوه او په هغو کڅوړو باندې یې ونازوه.

خرم صاحب میلمه ته د ایران نه راغلې پنځه تورې کڅوړې ورکړې او په عزت مو رخصت کړ، وروسته چې خبر شو دا سړی عادي دوکاندار دی، کرزي تندي ته ټک ورکړ د امریکې او ناټو یو دام و، دوی سوله نه غواړي".

رنگین دادفر سپنتا سیاست افغانستان؛ روایتی از درون‌دربیم جلد۴۷۹مه پاڼه

عبید ـ تنویر

# له خپل مجاهد ولس سره

## د اسلامي امارت همدردي او اخلاص!!

داسلامي امارت په تیردور خبره نکوو ؛ له تیرونیږدي ۱۷ کلونوراپه دې خوا په داسې حال کې چې اسلامي امارت له یوه لوري دامریکا ، ناټو، مزدور رژیم ، اربکیانواوهم دداعش له فتنې سره په مخامخ جګړه بوخت دی اودهیواد داستقلال اودیني ارزښتونودساتلوم‌عرکه په خوراشجاعت پرمخ بیایي ورسره دخپل ولس دامنیت ، خوندیتوب اوسوکالی فرایض هم په ډیراخلاص اومتانت سرته رسوي .

اسلامي امارت تنهاپه پوځي تشکیلاتوبسنه نده کړي ، بلکې دهیوادوالو دمسائیلواوضروری اتودحل اوهغوته پروخت درسیدګي لپاره دهرولایت په سطحه ، قضایئ ، ښوونیز، صحي ، رغنیز، فرهنګي اونورهراړخیز تشکیلات اواداري تاسیس کړي چې دامارت دمشرتابه اومرکزي کمیسونوله لوري په زیات دقت اداره اوڅارل کیږي

داسلامي امارت خواخوږي قیادت په سختواوحساسوشرای طوکې ولس ته داحق اوسهولت مهیاکړی چې که چیرې الله مکړه دامارت کوم مسؤل اویافرد دعام وګړي په وړاندې زیاتی وکړی اوحقوق یې تلف کړي پرته له کومي ویرې هغه کس خپل شکایت اوغوښتنه قضایي اونوروړوړو مراجعوته رسولای شي اولوړې مراجع چې هغه شکایت واوري اوپه خپله یې هم هراړخیزه څیړنه ترسره کړي نوپه ډیرقاطعیت اقدام کوي اوڅوک چې مجرم ثابت شي ورته مناسبه سزاورکوي

اسلامي امارت دخپلو صفوفو دتصفیې او دولسي وګړو دمشکلاتودحل لپاره هرکال ځانګړي باصلاحیته پلاوي ټاکي دهرولایت ملکي اوپوځي چاري له نیږدي ارزوي دمجاهدینوله کړنواواعمالوڅخه مراقبت کوي عام ولس ته موقع ورکوي چې له نیږدي ورسره ووینې اوپه مطمئین ماحول کې دزړه خبره ورته وکړي ، هغه پلاوي بیا په ډیرصداقت اجراات ترسره کوي واړه موضوعات



ځای پرځای حل کوي اوپېچلي مسائیل داسلامي امارت لوړو مسؤلینوته رسوي اودورستیو اقداماتو لپاره یې دهغوئ تصمیم اوحکم ترلاسه کوي .

مشرتابه مقام هم دخپلولیرل شوو پلاوو راوړل شوي موضوعات یویو دوالیانو، زون مشرانو اوذی دخله مسؤلینوپه حضورکې څیړي اودحل لارې چارې یې لټوي .

امریکایانواودکابل استخباراتي اداري دیولړخاصواختطاف گرو گروپونوپه وسیله چې اوس دداعش په نوم رسوا شول له تیرو۱۷ کلونوراهیسې کوشش وویست چې دمجاهدینوله لیکوڅخه په استفادې داسې کرغیړن اعمال ترسره کړي ترڅو دولس او امارت ترمنځ واټن اوبدبیني رامنځته کړي ، لکه اختطاف له خلکوڅخه مالي استفاده ، درغنیزوچاړومخنۍوي ، دمکتبونوسوځول اوداسې نورولس دښمنه کړنې ، خودالله پاک په نصرت اوداسلامي امارت دویښومسولینودچټکواقداماتوپه سبب به ددښمن دغه ټولي چلوټې اوحربې خنثی عاملین به یې گرفتار او دلوائحو گرفت ته به ولویدل.

چې کله ددغوکثیفوگروپونو او اشخاصو هویت په ډاگه اونور ورته دفعالیت ځمکه پاتې نشوه نو اوس یې ځانونه دداعش په نوم راپورته اومستقیمایې سرونه دامریکایانوله سوړو اومراکزو راووتل.

فکرکوو چې په همدومرو ضیقواونامساعدو شرائطو کې به له ولس سره دخواخوږۍ اوهمدردۍ همدامناسب ثبوت وي چې هم له پنځولکواشغالگرواو دهغوئ له مزدوریانو، مختورو داعشیانو او کرایي ملیشوسره مقدسه جگړه کوي اوهم بیا دخپلو صفوفو دتصفیي اودمظلوم ولس دمشکلاتواومصائبودحل لپاره ترخپلې وسې مدبرانه اوحکیمانه تگلاره اومسیرپرمخ بیايي .

الحمدلله والشکرلله

# نوی نسل

## ولې دغیرت له باب سره نابلد شو!

لیکنه: {الهـــــام}

دمسلمان په غیرت او مېړانې نه یوازې اسلامي مورخينو خپلې ګوتې او قلمونه ستومانه کړي بلکې یهودي تاریخ یې هم بېشمېره کارنامې په لمن کې ځای کړيدي.

په اسلام کې ننګ او غیرت ځانګړې باب لـرې، بلکـې غیرت داسلام دوهم نوم دی .

او بې غیرتي له تکمیل دایمان سره ټکر او متضاد صفت دی.

تر قیامته به دتاریخ کربنه کامل مؤمن بې غیرتـه او بې غیرته کامل مؤمن ونه مومئ.

الله ﷻ په قران کـې مسـلمان د غـیرت او دیهـودو دبې غیرتي صفت بیان کړی

لکه دیهودو په باره کې فرمایې :

کله چې موسی علیـه السـلام دوی تـه وویـل جهـاد تـه راوځئ نودی وویل :

(فذهـب انت وربـک فقـاتلا اناههناقاعـدون) تـه او رب دې ولاړشئ او جنګ وکړئ موږ به دلته درته ناست یو .

داده بې غیرتي او بزدلي انتهاده .مانا داچې یهود قـراني بې غیرتان دې .

او دمسلمانانو دغیرت په اړه ګڼ شمیر ایاتونـه مـو جـود دي لکه دبدر ، احد اوحنین دغـرا ذکـر چـې پکـې شـوی ، هیڅکله صحابه کرام رضوان الله اجمعین له رسول‌الله ﷺ نـه په غزواتو کې پـر شـا نـدي ګرځیـدلي اونـه یـې هـم یـوازې پرېښی .

مانا مسلمان قراني غیرتي دي .

خو ډېر دتاسف او افسوس مقان دی ، چې دغـه قـراني بې غیرته یهود پر هغو مسلمانانو حکومت کوي دچا په ننګ او غیرت چې قران ناطق دی،

مسلمان ولې دومره ذلت پر چوکی کښېناسـت؟ ، ولـې خپل ازاد ضمیر دیهودو پر غلامـی کـې دشـېې کولـو اجـازه ورکړه؟

لامل یې څه دی؟

ځینـې خـو وایـې چـې دیهـودو د دومـره پـر مختللـې ټیکنالوژۍ پر وړاندې مسـلمان نشي۔ توانېـدلی چې خنـډ او مقاومت وکړي.

خوزه وایم چې دغه لامل یې نه دی ځکـه پـر مخـتللي وسایل څوک دغیرت پر ګدۍ نشي سـپرولی اونـه پـه تـاریخ کې داسې بېلګه لرو.

بلکه لامل يې يوازې دنوي نسل دغيرت لـه بـاب سره نابلدتيا ده .

او له دې بابه دومره لرې اوسيد چې دا ورتـه اوس پـه دين کې يوه نوې او مخترعه موضوع ښکاري،

خو ددې نه ډکېدونکې خلا مسؤلين يوازې او يـوازې دوخت علمأ او ښوونکي دي ،چې په دومره حساس وخت کې چې دغـربي تهـذيب طوفـاني سيلۍ داسـلامي کلـترو مراندې غوڅې کړې، او دوی دغفلـت پـه خېمـه کـې پـه نـه راويښېدونکي خوب ويده پراته دي.

مدرسه،مکتب،عالم،اوښونکی په اسلامي ټولنه کې هغه څوک دي چې دراتلونکي اونوي نسل داصلاح او روزنې تم ځای بللی شي.

خوپه روان تور تم کې چاهم خپـل مسؤليت نـدی تـر سره کړی او نه يې ورته بډې وهلي .

که موږ دمکتب ماحول ته ځير شو وبه گـورو چې غربي تهذيب پکې دومره سرايت کړی چې دخلکو ترينه دټولنې داصلاح اميد ختم شوی دی .

نصاب يې ورځ تربلې بدلون مومي هغه کتابونه چې دزده کونکي د خوزښت او بـدلون لامـل وه لکـه سيرت، داسلام تاريخ، اونور جهادي موضوعات په مکمله توگه له نصابه ولويده، حتی چې له غربي تهذيبه دومره متاثره شوه چې اسلامي نومونه هـم ورتـه سـاده گـي او عـار ښـکاري پرځای دحمزه، عمر، خالد، زبير، اوعبد الله به ته کرن خان ، شارخ خان، جهانگيرخان،سلمان خان اوامرخان غونـدې د فلمونو دهيروگانو نومونه اورې ماته دسـيد قطـب شـهيد رحمه الله خبره رايادوي چې ويل يې:

داسې نسل پکار دی چې اسلام پـر خپلـو اوږو بـار کړي، داسې نه چې دوی دسلام پر اوږو بار وي .

دغه حال دمدرسې هم ده چې نصـاب يـې ورځ تربلې بـدلون مـومي دسـيرت او تـاريخ کتابونـه خوپـه کلـيّ توگـه دنصاب له گړنگه لويدلي يوه زياتي او غيرې مفيده موضوع بللی شي، له منبر خځه يوازې درسول الله صلی الله عليه وسلم مکي زندگې بيانولی شي دعلماؤ تقارير او موضوعات يوازې په عباداتو راڅرخي په جهاد او غزواتو بحث کول ورتـه دسر په بيه ښکارې .

که زموږ له له منبره دجهاد غږ پورته کيدلی او په مدرسو او ښونځيوکې سيرت او تاريخ درسېدلی نو اوس به مـو نـوی نسل له غيرت سره دومره نابلد نه وای

او نـه بـه مـو دغربـی ښـکيلاگرو پـر وړانـدې دغـه نـه هېريدنکی ذلت وای.

زما بحث پر اکثريت بنا ده نه ټول ښونځي او مدارس او نه هم ټول علماء او ښوونکي ترې مرادي.

## سپينه بيرغه

سـپين بيرغـه بړده بنيادپـه هسـکوڅوکو
دپاميراودشمشـاد پـه هسـکوڅوکو

پـه وزرونـو کـي دي نغښـتي ازادي ده
شـه رپانـده دهيوادپـه هسـکوڅوکو

سـتاپه مينـه کـي سرونـه قوربـانيږي
تـه تـل اوسي دجهادپـه هسـکوڅوکو

دجانـان دلاس يادگـاريې راتـه پاتـه
رپووبـه دي ازادپـه هسـکوڅوکو

د"کـوچي "دوجودوينـه دي درځـارشي
نـوردي هـم غـواړم ابادپـه هسـکوڅوکو




# ایا لویه جرگه راه حل است؟

سهیل صالحی

لویه جرگه، شاید در بسا اوقات برای مردم افغانستان منحیث کلیدی برای حل مشکلات معرفی گردد، اما سوال این جاست که در کجا و چه زمانی لویه جرگه به راستی توانسته مشکلات مردم را حل نموده و ممثل اراده و خواست آنها باشد؟! این در حالی است که اساساً لویه جرگه بعد از ۲۰۰۱ به یک مکانیزم ننگ آفرین مبدل گردیده، مکانیزمی که تصامیم اتخاذ شده در آن به هیچ صورت نمی توانسته ممثل اراده مردم باشد.

چنانچه، لویه جرگه مشورتی در سال ۲۰۱۳ به منظور رایزنی در مورد موافقت نامه امنیتی میان افغانستان و امریکا برگزار گردید. اشتراک کنندگان لویه جرگه هر چند این موافقت نامه را تأئید کردند، ولی رئیس جمهور قبلی از امضای آن امتناع ورزید، که بعدها در زمان حکومت وحدت ملی به امضاء رسید. با امضای موافقت نامه امنیتی به نحوی به امریکایی ها اجازه داده شد تا به حضور بی پایان در افغانستان بدون وابستگی به قانون و مقررات دست یابند و به بهانه مبارزه با تروریزم با خون و استخوان مردم بازی کنند. امریکا و ناتو با حضور طولانی مدت در افغانستان به اهدافی از قبیل: دست یابی آسان به منابع این سرزمین، کنترول رقبای منطقوی از این طریق و بالاخره اهداف فرامنطقوی که در صورت حضور بی پایان در افغانستان می توانند بدان برسند.

در ضمن، می توان به لویه جرگه تصویب قانون اساسی که در سال ۲۰۰۳ دایر گردید نیز اشاره کرد. در آن لویه جرگه قانون اساسی بالای مردم مسلمان این سرزمین تحمیل گردید که خلاف تمام ارزش های اسلامی و عقیدتی مردم بود. قانون اساسی که بر اصل دموکراسی استوار بوده و بصورت آشکار جدایی میان دین و سیاست در آن به چشم می خورد و این مسأله در تناقض با ارزش های اسلامی می باشد.

و این گونه با استفاده از یک نهاد نامشروع بنام لویه جرگه، قانون خلاف شرع را توسطه نمایندگان نام نهادشان جنبه شرعی بخشیدند و آن را به عوض قوانین الهی اساس حکومت داری خویش قرار دادند. در قانون اساسی، بعضی از جنبه های به ظاهر اسلامی را برای فریب مردم جا گذاشتند تا مردم فکر کنند، اسلامی است.

با تمام این ها، لویه جرگه ی که امروزه از آن در فضای سیاسی صحبت می شود به هیچ صورت جایگاه شرعی نداشته و ندارد. صرف اسلام شورا و مشوره را در یک حاکمیت اسلامی جواز دانسته است.

با این حال می توان گفت که نتیجه این گونه لویه جرگه ها به هیچ صورت به نفع مسلمانان افغانستان نبوده و بیشتر از این که ممثل اراده وخواست آنها باشد، وسیله برای بدست آوردن اهداف بیگانگان می باشد. از جانب دیگر، اراده وخواست مردم در موجودیت اشغال گران که جز منافع شان چیز دیگری برای شان اهمیت ندارد هیچ معنای نمی تواند داشته باشد. از این رو، تلاش ها برای برگزاری چنین برنامه های نمادینی در حقیقت تلاش برای فریب اذهان عامه می باشد و نمی تواند بصورت اساسی و ریشه یی مشکلات افغانستان را حل کند.



# واکمنو ته سپینه خبره

## (ستر جهاد)

واکمنو ته سپینه خبره کول زور غواړي، لېږ نه ډېر غواړي، خو که څوک زړه کې د الله رښتینې وېره ولري او د ولس وګړي د خپلو مندو او پلرونو، خوندو او وروڼو او لوڼو او زامنو په څېر وبولي، د هغو درد، کړاو او هره ستونزه خپله او په رښتینې توګه احساس کړي؛ هغه سړی واکمن ته د سپیني خبري زور لري. او هغه کولی شي دا عظیم او ستر جهاد ترسره کړي، ظالم او سرټمبه واکمن ته حقه وینا او سپینه خبره عظیم جهاد دی. إِنَّ مِنْ أَعْظَمِ الْجِهَادِ كَلِمَةَ عَدْلٍ عِنْدَ سُلْطَانٍ جَائِرٍ. رواه الترمذي.

په دې اړه د اسلام د راشد خلیفه عمر بن الخطاب او معاویة بن ابي سفیان رضي الله عنهم د واکمنۍ د مهال څو په زړه پوري بېلګې رااخلم. خدای دې وکړي په یاد یې ولرئ، که چرته اړتیا رامنځته کیدله کشرانو او مشرانو واکمنو ته یې د سریزي په توګه وړاندې کړئ، باید په دې هم پوه شو چې د واکمن لفظ پخپله ګیډه کې خورا پراخه مفهوم لري، د کاله له مشره، د کلي او قام له سرخیله یې ونیسه تر ولسمشره دا هر یو پخپله دایره کې واکمن دی او که دوی مو کاږه لیدل سپینه ورته وایئ.

① عمر بن الخطاب رضي الله عنه مشربة بن حارثة ته ورغی، هلته یې محمد بن مسلمة وموند، عمر ورته وویل: محمد! زما چلند څنګه درته ښکاري؟ هغه ورته وویل: والله داسې لکه زما زړه یې چې غواړي او څوک چې ستا ښه غواړي هغوی ټول ستا له چلند نه راضي دي. ته د مال جمعه کولو کې ځواکمن یې، پاک یې هغه کې خیانت نه کوې او په وېش کې یې عدل کوې.

که چرته له دې لاري کوږ شوې موږ به دې داسې سم کړو لکه د غیشو په ځانګړې اله کې چې خلک غیشي سموي. عمر وویل: څه؟! محمد وویل: که چرته له دې لاري کوږ شوې موږ به دې داسې سم کړو لکه د غیشو په ځانګړې اله کې چې خلک غیشي سموي. عمر وویل: الحمد لله زه داسې خلکو کې اوسم، که کوږ شم هغوی مې لاري ته سموي. كتاب الزهد لابن المبارك

② بل روایت کې راغلي نعمان بن بشیر رضي الله عنه وایي: عمر بن الخطاب یوه ورځ د مهاجرینو او انصارو یوه مجلس کې وویل: ستاسو څنګه خوښه ده چې ځیني کارونو کې نرمي او په رخصت عمل وکړو؟ هغوی چوپ شول، عمر دا خبره دوه دری ځله تکرار کړه، بشیر بن سعد ورته وویل: که دا کار مو وکړ د غیشي په څېر به دې سم کړو، عمر ورته وویل: تاسي خو تاسي یئ. تاريخ الكبير للبخاري و تاريخ دمشق لابن عساكر

③ معاویة رضي الله یوه خطبة کې خلکو ته وویل: د دولت شتمني او غنیمتونه زموږ شتمني ده، زموږ خوښه ده که چا ته یې ورکوو یا نه ورکوو، د معاویة په دې خبره هیچا هم نیوکه ونه کړه، د دویمې جمعې خطبة کې یې هم دا خبره وکړه او چا نیوکه پرې ونه کړه، دریمه جمعه کې یې چې بیا دا خبره وکړه، جوماټ کې یو سړی ورته پورته شو، ول هیڅکله داسې نه ده، د دولت شتمني او غنیمتونه ټول زموږ دي، څوک چې زموږ د شتمني مخکي خنډ ګرځي هغه به په تورو سموو.

کله چې لمونځ وشو معاویة هغه سړی وروغوښت، خپل ځان سره یې څنګ ته کینوه، بیا یې نور خلک وروغوښتل او خلکو ته یې وویل: اې خلکو! ما دوو جمعو کې تاسو ته هغه خبره وکړه هیچا نیوکه ونه کړه، دریمه جمعه دې سړي زما خبره رد کړه، دې سړي لکه ما ته چې ژوند راوباښه الله دې دی ژوندی لري.

معاویة خلکو ته وویل: رسول الله صلی الله علیه وسلم نه مې اوریدلي دي، هغه فرمایل: داسې خلک به راشي چې خبرې کوي څوک به نیوکه نه پرې کوي الله به هغوی جهنم ته وغورځوي. زه وویریدم چې له دې خلکو ونه ګرځم، کله چې دې کس په ما نیوکه وکړه لکه ما ته یې چې ژوند راوباښه الله دې دی ژوندی

لري. الهيثمي مجمع الزوائد کې وايي: دا روايت الطبراني اوأبو يعلی راخيستی او رجال يې کره دي.

④ معاويه رضي الله عنه شام کې د خپل امارت زمانه کې د "القصر الخضراء" يعني شنه ماڼۍ په نوم خورا ستره وداني جوړوله، چې په سلهاوو مزدوران په کې اخته وو. ابو ذر رضي الله عنه ورغی او ورته ويې ويل: که دا د مسلمانانو په پيسو جوړوې نو خيانت کوې او خائن يې او که پخپلو پيسو يې جوړوې نو اسراف کوې. الاسلام المفترى عليه ص: ۸۵]

# پلار دی، د شهید بچي کیسه کوي

ليکوال: نصيب ځدراڼ

د ژمي يخه شپه وه، بخارۍ په کوټه کې لګېدلې وه، ماشومان ويده وو، هر طرف ته خاموشي وه.د سپيو د غپيدو غږ له لرې لرې نه راتلو، کامل جان ويده وو او ګرمه برستن يې په ځان اچولې وه.

دخپلې مېرمن په غږ راويښ شو،"سړيه پاڅه ته يې وګوره چې څوک دي، د دروازې د خلاصيدو غږ مې واورېد، ډېر ځنډ يې هم وشو، ته ورشه ويې ګوره، انديښنه راولويده خوب نه راتلو نو ته مې راجګ کړې.ته وګوره چې څه خبره ده"

کامل جان په منډه راپاڅيد، څادر يې له ځان نه تاو کړ، ټوپک او د لاس بټۍ يې له ځان سره راوخيستل، په زړه کې يې انديښنې وې، چې دا به څوک وي؟ غل، دښمن، ......يا بل څه.؟؟؟

کامل جان يې د پلار کوټې ته ور روان شو چې خبر يې کړي چې زه تر دروازې پورې ځم. ګوري چې پلار يې په کوټه کې نه شته.

کامل جان د ځان سره حيران شو چې پلار به مې چيرې تللی وي، تشناب خو هم په کور کې شته.د شپې يوه نيمه بجه ده، بيرته راغی ښځې ته يې وويل بابا جان لګه چې د باندې وتلی، زه يې ګورم.

د باندې راووتلو لومړی جومات ته ورغی خو دروازه يې بنده وه څوک نه وو، بيرته راوګرځيد، سخته يخه سيلۍ چليده،د خپلو پتيو په لور روان شو، په لاره کې چې د هديرې ترڅنګ تېربده د سلګيو غږ يې واورېد، ورته ودريدو، ور وېې کتل پلار يې څادر له ځان نه تاو کړی ده، لاسونه يې لپه کړي او د يوه قبر سر ته ناست ده.

په قبر ليکل شوی وو،"

يوېشت کلن حافظ بلال شهيد" او پاس سپين بيرغ وربانديې لګيدلی و.

کامل جان غږ پرې وکړ.پلاره څه دي له ځان نه ماشوم جوړ کړی! دا يخه شپه وګوره، څومره سخت ساړه دي، مريض هم يي نو دلته څه غواړې؟

پلار يې اوښکې په څادر پاکې کړې، ويې ويل: "نو څه وکړم؟ بلال چې شهيد شوی هيڅ مې نه هيريږي، پخوا ما او مور به دې يو ځای سره ياداوه، يو ځای به مو ژړل، نو دا ده اوس دې د مور هم دوهمه مياشت ده چې د بلال غمونو وخوړه او د کامل جان د مور د قبر طرف ته يې اشاره وکړه. بيا لګيا شو.....

"چې د کوم وخت راهسې دې مور وفات شوې ده زويه زه هره شپه دلته راځم تر ځنډه ناست يم، د دوی سره خبرې کوم دعاګانې ورته کوم، په کور کې په تنهايۍ کې د دوي غم د چا سره وژاړم؟؟؟

کامل جان مخ ته څادر ونيو، مړې اوښکې يې په مخ راماتې شوې او د مور د قبر سر ته کيناست!!!!!

"پلار دی دشهيد بچي کيسه کوي

خوله کې يې خبره سلګو واخيسته"

(((حافظ بلال د پکتيکا ولايت د برمل ولسوالۍ اوسيدونکی و،چې د پکتيکا د اربکيانو د خاصې قطعې مشر. عزيز الله او د ايتلافي ځواکونو په چاپه کې په شهادت رسيدلی و)).

# ژمی د مسلمان لپاره ستر غنیمت!

کله به چې ژمی رانږدې شو؛ نو عبید بن عمیر رحمه الله به ویل:

-ای د قران والو! د لمانځه لپاره شپ

اوږده شوه، او د روژې لپاره ورځ لنډه شوه؛ نو غنیمتونه ترلاسه کړئ.

یا أهل القرآن طال اللیل لصلاتکم وَقَصر النَّهار لصیامکم فاغتنموا.

[ابن أبي شیبة في المصنف۹۸۳۶]

په یو حدیث شریف کې راغلي چې، رسول الله ﷺ فرمایلي دي:

-«تُعْرَضُ الأَعْمَالُ يَوْمَ الاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسِ؛ فَأُحِبُّ أَنْ يُعْرَضَ عَمَلِي وَأَنَا صَائِمٌ»

[الترمذي حدیث رقم: ۷۴۷]

ژباړه:

-د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ (الله تعالی ته د بندګانو) عملونه وړاندې کیږي؛ نو خوښوم چې، زما عمل په داسې حال کې وړاندې شي چې، روژه یم.

په بل حدیث شریف کې راغلي:

-عائشه رضي الله عنها وایي چې، رسول الله ﷺ به هره دوشنبه او پنجشنبه روژه نیوله.

[الترمذي حدیث رقم: ۷۴۵].



# Srak Magazine

## خاطـــره:

### ليکوال او څيړونکي ملاخبير احمد مجاهد وايي:

دامريکايانو ديرغل غالبا دوهم کال وو داسلامي امارت له نائب شهيد ملاعبيدالله (نورالله مرقده) سره مې وليدل دنورو خبرو او پوښتنو ترڅنګ مې ترينه وپوښتل چې حاجي ملاصاحب کوم هيواداودنياکوم طاقت دمرستي او کمک وعده درسره کړي کنه ،څکه دامريکا مقابله خو په تش لاس نه کيږي؟

مرحوم ملاعبيدالله اخوند راته ووئيل دالله جل جلاله په ذات درته لوړه او قسم کوم چې غير دالله پاک له مرستي اووعدي څخه علاوه ددنيا په مخ نه کوم هيواد شته اونه کوم تنظيم چې مونږ ته دې دتعاون وعده اواطمنان راکړي وي.

نو ماورته ووئيل چې دابه سنګه کيږي زياته مشکله نده؟

دجهاد دغه سپه سالار راته ووئيل چې که بل څه نه وي (ډبري) اوکاني خو شته هغه به ددښمن په طرف ورولو همدغه زمونږ مکلفيت دی چې کفارو اويرغلګرو ته به نه تسليميږو.

( اللهم ارحمه واغفر له واجعل الفردوس الاعلی داراً له)